# حرک

## ټرمپ ولې له توافقنامې تېښته وکړه؟

شپاړسم کال، شپږمه، پرلپسې ۱۱۳مه گڼه،
سنبله ۱۳۹۸ل، محرم الحرام ۱۴۴۱هـ ق، سپتمبر ۲۰۱۹م



## ۱۱ سپتمبر شعارهای که دروغ ثابت شدند



## ټرمپه ! افغانستان

د خپلو کوراو د پردیو گوردی



## جلال الدين حقاني

د منبر او سنگر امام او د پېړۍ مجدد رهبر

# څرک

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، شپږمه، پرلپسې ۱۱۳مه ګڼه،
سنبله۱۳۹۸ل، محرم الحرام۱۴۴۱هـ ق، سپتمبر۲۰۱۹م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صا بر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګڼون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه



پتې :

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم





سرمقاله

# ټرمپ ولې له توافقنامې تېښته وکړه؟

امریکایانو په نظامي میدان او خپلو ټولو کرغېړنو ستراتیژیو کې له نه اټکلیدونکو شکستونو او رسواییو وروسته فکر کړی وو چې ، له اسلامي امارت څخه به په سیاسي او ډیپلوماتیک ډګر کې غچ او انتقام واخلي ، په دې معنا چې د امارت هغه موقف او داعیه چې په تېرو ۱۹ کلونو کې امریکایانو په زور او جبر کمزورې او متزلزله نشوای کړی دغه هدف ته به د مذاکراتو ، خبرو اترو او سیاسي نیرنګ په وسیله ځان ورسوي.

داسلامي امارت د سیاسي او ډیپلوماتیک میدان ځیرکو او متعهدو استازو په خپل ټول متانت او حوصلې سره ، نږدې یو کال مذاکرات او خبرې اترې وکړې ، امریکایانو په دغه موده کې له خپلو ټولو نیرنګونه او د سیسو څخه کار واخیست ، له بېلابېلو لارو څخه یې هڅې وکړې چې د امارت مرکچیان تر فشارونو لاندې راولي او دېته یې اړ کړي چې له خپل موقف څخه تنزل وکړي ،

یعني د امریکایي پوځیانو وتل د دوی خوښې او مرضی ته پرېږدي او یا لږ تر لږه درې کاله وخت ورکړي چې ، امریکایان خپلې قواوې وباسي.

دغه ډول د امریکایانو عمده هدف دا هم وو چې ، د کابل اوسنی رژیم دې په خپل جوړښت پاتې شي او په اصطلاح ۱۸ کلنې لاسته راوړنې دې حفظ او تسلیم کړای شي !!!

څرنګه چې دغه غوښتنې ټولې د افغانستان د لوړو مصالحو او دیني ارزښتونو سره په ټکر او تصادم کې وې او منل یې د امریکایي اشغال تمدید او نورو بدبختیو ته زمینه سازې وه نو د امارت بادرکه مرکچیانو دا ټولې رد او غیرې عملي وبللې.

ټرمپ چې کله دغه حالت او د امارت او امریکا ترمنځ د توافقنامې کرښې او مواد ولیدل ، نو دا چې دلته په څرګند ډول امریکایي غرور او تکبر زیر زمین شوی او د سیاست په میدان کې هم امارت برلاسی او منګول یې ډک وو، نو د مقابلې له ډګره یې په ډېره سپین سترګی تېښته وکړه او د یوه ټویټ په خپرولو یې له امارت سره مذاکرات معطل او وځنډول.

ټرمپ که څه هم په خپل ټویټ سره د یو څو ورځو لپاره ځان د مډیا په سرلیکونو کې تود او بارز وساته او ضمنا یې د کابل مخ په ځنکدن ادارې ته یو څه ایکسجن او دمه ورکړه، خو ټولې دنیا ته یې ثابته او ورښکاره کړه چې امریکا څومره د چل ، فریب او بې اعتبارۍ ځاله ده.

ټرمپ فکر کړی وو چې په خپل ټویټ به امارت وارخطا او دېته مجبور کړي چې له خپل دریځ څخه وروسته شي او یا کومې معاملې ته یې اړ کړي، خو کوم موقف او دریځ چې امارت ونیوه او د ټرمپ د ټویټ په مقابل کې چې کومه درنه او معقوله اعلامیه صادره شوه له شک پرته چې په نړیواله او سیمه ییزه کچه یې په مستقیم او غیر مستقیم ډول پراخ هر کلی وشو.

همدا علت وو چې ټرمپ له یوې څخه بلې ورځې ته له خپل لجاجت او سرتمبکۍ څخه شاګرځ وکړ او په ورستیو خبرو او ټویټونو کې یې دېته تمایل وښود چې بیرته به د خبرو او اترو جریان ته ورګرځي.

# دسولې توافقنامې لاسلیکولو څخه

# دټرمپ تیښته؟

ارمان ساپی

دطالبانو او امریکایانوترمنځ د مذکراتو دنهو اوږدو پړاوونو وروسته دواړو لورو ترمنځ دسولې په وروستی توافق پاڼې یا مسودې داتفاق راتلو وروسته جانبینو دهغې دلاسلیکولو لپاره چمتوالی نیو، ناڅاپه دامریکا ولسمشر[ ټرمپ]د ټولو نړیوالو اصولو اومقرراتونه په بربنډه سرغړونه کابل کې دیو امریکایي عسکر دوژلو په پلمه دتیرنیږدې یوکال راهیسې رواني خبرې وځنډولې...

دشک پرته ټرمپ افغانان زیات نهیلي کړل اودهغوی په ارمانونویې خاورې امبارکړې، ښکاره ده چې افغان ولس دتیرو څلورو لسیزو راهیسې دجګړې له بدمرغیو اوناخوالونه په تنګ راغلی او دتیر یوکال نه یې په خورا ورخطایي سره انتظار ویسته چې دسولې لپاره رواني خبرې به کومې مثبتې نتیجې او مثمرې هوکړې ته ورسیږي، لیکن ټرمپ په یوټویټ کولو سره داټولې هیلې اوارزوګانې ووژلې

دکتونکو په اند:امریکا اوطالبان دواړه د ګډې توافق نامې دمتن په لیکلو توانیدل یوتاریخي اومثبت پیشرفت و، خوداچې دواړو غاړو دتوافق نامې لاسلیکلو ته ترتیبات نیول اوپه عین حال کې دټرمپ لخوا دسولې ضد غږپورته کیدل خواشینونکی غږو،په دې سره ټرمپ دیوې سترې او تاریخي اشتباه مرتکب شو چې په هیڅ صورت هغه دتوجیه اوقناعت وړنده

ټرمپ پخپل ټویټ کې تورپورې کړ چې ګواکې طالبان قصداً غواړي دجګړې په تشدیدولو سره ځا نته زیات امتیازات ترلاسه کړي او دوی مونږ سره کړو ژمنوته متاعهد پاته نشول

طالبانو په یو معقول غبرګون کې دټرمپ دغه تور رد کړ، هغوی وویل: د دوی او امریکا ترمنځ دجنګ بندیز په اړه داسې کوم توافق نه وشوی چې دتوافق نامې دلاسلیکولو څخه ورانډې به دوی بریدونه ودروي اوبل دمذاکراتو دشروع کیدو سره سم امریکایانو اوهغوی اجیر رژیم هم جګړه دومره سخته اوتیزه کړه چې پکې یې په سوونو ملکي وګړي په شهادت ورسول ، په مدرسو اوجوماتونویې چاپې اوبمباری ډیرې کړې، شپیني عملیات یې پراخ پیل کړل اوس هم دهیواد په مختلفو ولایتونو کې دامریکایانو په ملتیا شپیني عملیات اوبریدونه جریان لري چې د قربانیانو لویه سلنه یې ملکي وګړي، میرمنې او ماشومان دي لیکن امریکایان دا وحشتونه نه بولي او نه یې محکوموي

دطالبانو دمرکچې پلاوي مشر شیرمحمد عباس ستانکزي بې بې سې سره په خبرو کې وویل: دوی اوس هم دسولې په اړه دتوافق نامې متن ته ژمن دي او دامریکا سره یې دخبرو لپاره دروازې پرانیستې دي نوموړي دا هم وویل: که دامریکا سره توافق نامه لاسلیک شي دهغه وروسته به د دوی اوامریکایانو ترمنځ په ټول هیواد کې اوربندوي او همدا راز چې کله افغاني مذاکرات پیل شي هلته به دنورو موضوعاتو سره یوځای په بین الافغاني اوربند باندې هم بحث اوغور وشي

ځیني شنانديي په دې باوردي چې دامریکا دننه واکمن ویشلي ، یوه ډله امریکایان هغه دي چې زیاتره پکې امریکایي جنرلان دي دجګړې دوام غواړي او په افغانستان کې دجګړې دپای ته رسولوسره مخالفت لري هغوی له افغانستانه دامریکایي ځواکونو وتل دامریکا لپاره له پیغور اوخجالت څخه ډک ګام بولي




دوهمه ډله هغه ده چې روانه جګړه پای ته رسول غواړي، هغوی دجګړې د دوام سره مخالفت کوي او نه غواړي چې امریکا دي نوره هم په جنګ کې ښکېل پاته شي هغوی دافغان جګړې دوام دامریکا داقتصاد لپاره خطر بولي په دې وجه په کلکه دجګړې غځولو له دريځ سره مخالفت کوي

ټرمپ هم ددغو دواړو ترمنځ نښتی دی هغه کله دجګړې په خلاف ټویټونه وکړي اوچې کله دجګړې د دوام له پلویانوسره مخ شي، دهغوی اندیښنې او خبرې واوري نو پرته دکوم ځنډنه دجګړې دغځولو ملاتړ وکړي، نوپه دې وجه ویل کېږي چې ټرمپ تراوسه دافغانستان په باره کې کومه مستقله تګلاره جوړه نکړای شوه او نه یې دامریکا واکمن په یو دريځ باندې راټول کړای شول، همد ا وجه چې ځیني امریکايي لوړپوړي واکمن دجګړې دغځولو پلوي کوي اوپه هغو امریکايي واکمنو نیوکې کوي چې جګړه پای ته رسول غواړي، په مقابل کې هغه امریکايي چارواکي هم چې افغانستان کې نورتم کیدل دامریکا لپاره بد شاګوم بولي دجګړې د دوام پلویان غندي اوهغوی دانسانیت قاتلین نوموي،هغوی غوښتنه کوي چې ژر، ترژره دي امریکايي عسکر افغانستان ترک کړي اوبیرته دي خپل هیواد ته راشي

دټرمپ لخوا دسولې په اړه دتوافقنامې دلاسلیکولو ځنډولو وروسته طالبانو دیپلوماسي په کا راچولې، هغوی روسیې ایران اونورو هیوادونوته سفرونه وکړل او دسولې په اړه یې خپله پخوانی ژمنتیا بیا، بیا په ډاګه کړه، پخپلو تازه سفرونو کې دسولې په اړه خپل پخوانی دريځ نورهم روښانه کړ، چې خپل هیواد کې دهیځ کوم هیواد عسکري شتون ورته دمنلو وړندی دهغوی په اند: دسولې لپاره رواني هلې ځلې یو اځي هغه وخت ه بریالی کیدا شي چې کله امریکا خپل ټول عسکر له افغانستانه وباسي

د کتونکو باورداد‌ی چې دټرمپ دټویټونو موخه په طالبانو فشار راوستل دي څو هغوی دیوشمیر امریکايي عسکرو په شتون راضي کاندي او هم په سیمه کې دامریکا داستخباراتي پوښښ سره توافق وښیي خو معلومه خبره ده چې طالبان له وړاندې څخه په دې اړه ښه معلوم دريځ لري چې دوی په هیواد کې دپردیو له شتون سره حساسیت لري

رازو دیته چې دامریکا ولسمشرلخوا دسولې توافقنامې لاسلیک ځنډول ښیي چې اصلاً امریکا دسولې اراده نلري، محض په نمایشي غرزو پرزو افغانان او نړیوال تیرباسي، غواړي چې دمیزپه سرخپلو مخالفینوته دوکه ورکړي، لیکن داچې طالبان بیداروو، هغوی ته دخبرو له لارې نه یواځې امریکا دوکه ور نکړای شوه، بلکې ترډیره یې په سیاسي ډګرکې هم امریکا ماته کړه، او خپلې غوښتنې پرې ومنلې، هغه وچې په خبریدویې ټرمپ عصباني شواوپرته دکوم سنجش او سوچ کولویې دسولې په اړه دمنل شوې مسودې دلاسلیک څخه تیښته وکړه

وایي« چې ځي، ځي ابازوته به راځي»امریکا که هرڅو خبرې لغوه اعلان کړې، دتوافق نامې دلاسلیکولو څخه ډډه وکړې، اخربه بیرته دخبرومیزته راګرځي، له دې پرته بله لار نلري اونه دبمبارونو اوبریدونوپه ډیرولو سره جګړه ګټلی شي نو حتمي ده چې امریکا به پخپله تګلاره له سره سوچ وکړي او دمنل شوې توافق نامې دلاسلیکولو لپاره به طالبان او امریکا بیا خبرې پیلوي، هو!طالبانو ته پکارده په روانوحساس شیبو کې هیڅکله غفلت ونکړي او نه دامریکا یانو دفشارونوڅخه مرعوب شي، دتیر په څیرباید په خپل موقف باندې کلک او ثابت قدم پاته شي امریکا به راځي د دوی لاسونه او پښې به نیسي دخپلو عسکرو دخوندي وتلو لپاره به ترې داډ غواړي.



# طالبان په مرګونو نه ختمیږي!!

صارم

په دې وروستیو کې دکورنیو کابل واکو ګوډاګیانو په شمول دهغوی بادارانو هم چیغې پیل کړې چې دومره طالبان مو ووژل، دومره به ووژنو، هابه وکړو او دابه وکړو.... په داسې حال کې چې دا ۱۹ کاله یې هیڅ صرفه نه ده کړې، خو دا طالبان ورک نه شول بلکې زیات او څوبرابره ډېر ځیرک، حساس او تېز شول، او دا هغه حقیقت دی چې دوی ټول پرې اعتراف کوي او هغوی هم په داسې ډول ثابته کړې چې انکار ترې نه شي کېدای.

راځئ دا خبره له هغو سره دزړه له کومي شریکه کړو چې په دې تمه دي چې شاید یوه ورځ به له دې ټولنې دملا او دجومات اړیکه وشکیږي او بیا مو چې څه زړه وي هغه به کوو، داخیال له وقوع او عملي بڼې ډېر لرې دی، ځکه په مشخص ډول د یوه واکمن له زمانې به یې نه وایو، بلکې دافغانستان دجوړښت له تاریخه که ورته دقیق شو، په دې هیواد کې هغه واکمن پاته او حکومت یې دوام کړی چې ملا یې په اعتماد کې اخیستی او له جومات سره یې دښمني نه ده راغلې او بس.

دا هسې جذباتي او له ځانه جوړه خبر نه ده، تاسې ښه ورته دقیق شئ او غور پکې وکړئ، که ډېر لرې نه ځئ دامان الله خان له زمانې تر دې دمه په افغانستان کې ډېر واکمن راغلي او بېلابېل حکومتونه رامنځته شوي دي، ترڅو چې دکمونستانو په څېر دصفاکو او بې رحمه خلکو غوندې واک او اختیار هم راغلی چې هیڅ خنډ یې په مخ کې نه لیده، خو چې له ملا او طالب یې په مخ کې ودرېد نو دتل لپاره له دې هیواده ورک شول او هیڅ نوم اونښان یې هم پاته نه شو.

په افغاني ټولنه د ملا حاکمیت اوتسلط بې مثاله دی او دنړۍ په سطحه به یې بېلګه ونه موندل شي، دا په دې چې له دې خاورې او دې خلکو سره دیني مزاج اغښل شوی او هیڅ یو قوت یې سره بېلولی نه شی اونه هم تردې دمه څوک توانېدلي چې دغه هدف ته ورسیږي.

نو دامریکایي بمونو او ټانکونو په په زور پرې دیمکراسۍ تپل هم همداسې محال ده لکه کمونستي نظریه چې د وخت تر ټولو ستر استبدادي قوت (شوروي) پرې په ټول قوت او امکاناتو ونه شوای منلی تردې چې نور قوت ورختم شواو د مرګ اود وحشت هیڅ ډول یې ونه سپماوه.

دغه دیوځو لنډو ورځو لپاره په پردیو غوړو مستي لنډه او ژر ختمېدونکې ده، دافغانستان دخاورې حقایق او واقعیتونه دلته تحولات اوبدلونونه راوستلی شي نه پردي وسایل او امکانات، حتی که دغه امکانات او وسایل د شوروي دوخت په څېر پرېمانه اوبې حسابه هم شي، ختمېدل یې حتمي دي، دافغانستان له شته واقعیتونو او حقایقو څخه یو دا هم دی چې د دې ولس (چې ټول له امریکایي یا غربي اشغال سره په جنګ دی) یا په مخشص ډول د طالب اقتصادي منابع د دې خاورې، له کور کلي، غوا، چرګې او هګۍ څخه دي، خو په مقابل کې یې د پردي اشغالګر او اجیر عسکر حتی یو غوړپ اوبه هم له بهر څخه دي، نو ترڅو به یې اکمال کړي او دافغاني مجاهد منابع به څوک په څه ډول کنګل کړي.

وایي چې داسلامي خوځښتونو مثال د موم په څېر دی څومره چې تر فشار لاندې راځي هغومره سره ټینګیږي، طالب محدوده ډله او په شمار جنګي ټولی نه دی چې په مرګ به ختم اوله منځه ولاړ شي، طالب نظریه ده، طالب یو داسې پوخ فکر



دی چې تر اشخاصو او ککريو نه دی محدود، هغوی چې په ډېرو سختو شرايطو او ضيقو حالاتو کې د خپلو رهبري ځېرو په مرگ او وژنو ختم نه شول، بلکې نور هم ډېر او عالمي شول، نو دافرادو په مرگ سره هيڅکله نه شي ختمېدلی.

هغه امريکايي جنرالان چې له جومات سره يې دښمني راغلې، که نن غورځې پرځې کوي، او ولس گواښي، ډېر ژر به د دغو جنرالانو په پله پل بردي، چې له دې خاورې په ټيټو سترگو او ځوړند سرو وتلي.

له افغانستانه وروستی وتونکی روسي جنرال "گوروموف" په افغانستان کې دخپلې ماتې علت جوماتونه ښيي او وايي: "... گورئ په افغانستان کې نږدې څلوېښت زره جوماتونه دي اوپه هر جومات کې له يوه امام سره درې څلور تنه دايمي اوسيږي، نو تاسې فکر وکړئ چې زمونږ دپوځ په وړاندې هغوی څو برابره زيات دي... "

دوخت دواکمن دې له هوشه کار واخلي او د دې پدېدې دختمېدو کوشش دې نه کوي، چايې هم چې دختمېدو هڅه کړې په خپله ختم شوي او ترننه دهيواد په تاريخ کې بدمرغه يادېږي.

# تنقيد داصلاح غوره وسيله

#وقار

تنقيد داصلاح غوره وسيله ده، خو پدې شرط چې تنقيد سالم او موخه يې اصلاح وي ، هېڅوک هم معصوم ندي او نه ما فوق الآصول دي نقد وکړئ او نقد بايد ومنئ، خو داخلاقو او انساني کرامت په چوکاټ کې ، له تنقيد څخه بايد مثبته گټه واخېستله شي او يا يې هم معقول ځواب وويل شي ، هېڅوک دي هم ځان ته دا حق نه ورکوي چي زه دمقام، يا علميت، يا نسبيت، يا منسوبيت، يا سابقې او يا هم نورو وجوهاتو په اساس غير قابل تنقيد يم.

خپله هم بايد د تنقيد منلو حوصله ولرو او په بل هم سالم، معقول او داخلاقو، حياء او ادب په چوکاټ کي تنقيد وکړو، په تنقيد کولو کي د هيڅا شخصيت بايد ونه ځپل شي او نه د هغه په مثبتو کړنو سترگي بايد پټي شي او کومي کړني چي منفي وي او يا ټولنيز منفي اړخونه او اضرار ولري هغه بايد وڅېړلي شي او داصلاح په موخه بايد نېوکه پرې وشي.

او دا د هر مسلمان مسلم او مشروع حق دی .

**الله تعالي فرمايي : كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ (۷۹)**

د الله تعالی له رحمت څخه دبني اسرايلو درټلو لوی لامل هم داوو چي چا به پکي ناوړي کړني کولې له هغو به يې نه راگرزول الله تعالی وايي دهغوی دا تگلاره ډېره بده وه.البته د نېوکي او تنقيد که د اصلاح په موخه وي غوره او اغېزمنه طريقه داده چي له اړوند لوري سره په تنهايي کي مطرح شي، هغه متوجه کړل شي، وپوښتل شي، ځواب يې په دقت سره واورېدل شي.

د نورو په مخکي او يا په رسنيو کي وربانديې تنقيد کول د هغه د رسوا کولو مترادف وي ولو که د منتقد موخه اصلاح هم وي او پدې بڼه د تنقېد کولو ضرورت هغه وخت پېښېږي چي اړوند لوري ته د پيغام رسول نا ممکن وي او يا يې په تنهايي کي له اصلاح کېدلو څخه مايوس شوی وي او خطر يې ټولنيز وي.

حسن زوی

# دټرمپ پرېکړې امریکا ته څه ورکړل او نړۍ ته یې څه روښانه کړل؟

په داسې حال کې چې دافغانستان داسلامي امارت او امریکا دکابو ۱۰ میاشتو مسلسلو کوښښونو او خواریو په نتیجه کې دجانبینو ترمنځ په ټولو مادو اتفاق رامنځته شوی واو نهائي ترون رامنځته کېدونکی و ټرمپ په یو ټویټ په ښکاره ټوله خواري په سیند لاهو کړه او داوس لپاره هرڅه په ټپه ودرېدل.

په ۲۰۰۱ م کال کې دامریکا له لورې دافغانستان داشغال نه پس دافغانستان جنګ او روان حالات دنړۍ ترټولو ستره موضوع وه نو ځکه دامریکا اوطالبانو ترمنځ دسولې خبرو دټولې نړۍ توجو ځان ته راجلب کړی وه او اوس چې دټرمپ له لورې دمذاکراتو ودرول اعلان شول نو همدا دنړۍ ترټولو ګرمه موضوع ده او په اړه یې دنړۍ سیاسیون؛ حاکمان، څېړونکي او پوهان ښه ډېرغږېږي.

هرچا ولیدل چې دکابل ګوډاګی اداري کې د څولاسپوڅو واکمنانو او په امریکا کې دڅو متعصبو جنګ خوښو څېرو پرته نورې ټولې نړۍ مذاکرات یو ښه پېشرفت او په افغانستان کې دجنګ ودرېدو یو ښه فرصت ګڼلو او چې کله ټرمپ مذاکرات رد اودنهایي ترون درامنځته کېدو مخه یې ونیوله نو دکابل داداري دڅو لاسپوڅو او دامریکا دڅو متعصبو څېرو پرته ټولې نړۍ داکار دټرمپ ډېرناوړه اقدام وګڼلو او دمذاکراتو دبیا پیل کېدو هیله یې څرګنده کړه.

نو دا چې دټرمپ دا اقدام په نړۍ کې هیچا تائید نکړ دا زموږ لپاره ډېره دخوښۍ خبره اوستره لاسته راوړنه ده.

بې له شکه چې په افغانستان کې دجنګ ودرېدو او په خوندي توګه دټولو قابضو امریکايي ځواکونووتل دداړو اړخونو لپاره ډېره لویه لاسته راوړنه وه.

داشغال او قبضې پای ته رسېدل؛ دبې ګناه افغانانو دقتل عام دروانې لړۍ ودرېدل؛ د ملت او هېواد ازادي، په انصاف او عدل ولاړدیو خپلواک او سوچه اسلامي نظام رامنځته کېدل زموږ هغه عالي اهداف دي چې دلاسته راوړلو لپاره یې موږ له تېرو ۱۸ کلونو راهیسې په ډېر عالي مورال، په لوی شوق او لوړ احساس دجنګ ډګر ګرم ساتلی او پدې اوږدې مودې کې مو دځوانانو ترځنګ سپین زېرو، مېرمنو او کوچنیانو هم دسرونو ډېرې سترې قربانۍ ورکړیدي نو داعالي او سپېڅلي اهداف چې اوس له اسانې لارې ترلاسه کېدل دا به زموږ لپاره خورا ډېره ستره لاسته راوړنه وای.

اوکه ترون رامنځته شوی وای دا به دامریکایانو لپاره هم لویه لاسته راوړنه وای؛ دامریکا دتاریخ ترټولو اوږد، بې ګټې او دسترو ځاني اومالي تاوانونو نه ډک جنګ به یې پای ته رسېدلی او دخپلو نازولو فوځیانو دبایللو او دملیاردونو ډالرو دضائع کېدلو لړۍ به یې بنده شوی وای؛ دیو کمزوري هېواد او غریب ملت اشغال ته ددوام ورکولو او دلته هره ورځ دمظلومو او غریبو افغانانو په کورونو؛ ښوونځیوو، کلینیکونو، جوماتونو، مدرسو، جنازو او وراګانو دبمباریو او په نتیجه کې یې د کوچني، مېرمن، بوډا او ځوان دامتیاز پرته دبې ګناه انسانانو دوژل کېدو له امله چې امریکا په نړۍ کې سخته بدنامېږي دبدنامۍ دا لړۍ



به يې هم ودرېدلی وای خو ټرمپ په خپل يو ټويټ دا هر څه په سيند لاهو کړل او بېرته يې خپل ملت او هېواد يو بې ګټې اودسترو ځاني او مالي تلفاتو نه ډک جنګ ته سوق او يو ډېر ښه فرصت يې له لاسه ورکړ؛ نړۍ ته يې خپله وحشي- جنګ خوښوونکې دسولې ضد او بشر دښمنه څېره ښه روښانه کړه او ځان يې په نړۍ کې ښه زيات بدنام کړ.

دا سمه ده چې داساني لارې خپلو اهدافو ته درسېدلو فرصت سمدستي موږ له لاسه ورکړ چې دا تاوان نه بلکې ديوې ګټې نه لاسته راوړل دي خو اسلامي امارت چې دافغان مجاهد ولس نمايندګان دي نورې ډېرې سترې ګټې يې ترلاسه کړې.

لويديځ او په ځانګړې ډول امريکا دخپل بتليغاني مشين له لارې دطالبانو پرضد په تېرو دوه لسيزو کې دومره زيات منفي تبليغات کړي وو چې د نړۍ دزياتو خلکو دا يقين ته پرېوتې وه چې ګيني رښتيا هم طالبان دغرونو اوسېدونکي بې سواده خلک دي؛ دسولې، پرمختګ، بيارغاونې او عصري علومو دمېرمنو دزد کړو او دمېرمنو دحقوقو دښمنان دي؛ دبشر حقوق نه مني؛ انساني کرامت ته ندي قائل؛ دبشريت دښمنان دي، دټولې نړۍ پرضد يې جنګ اعلان کړی؛ په نړۍ کې دهيڅ يو هېواد او ملت سره ښه روابط نه غواړي؛ دخبرو اترو له لارې دستونزې په حل عقيده نه لري؛ دنړۍ سره دديپلوماسۍ په ژبه نه پوهېږي او دا چې دټولې نړۍ لپاره ډېر سترګواښ دی.

خو دقطر په پلازمېنې دوحه کې چې زموږ دسياسي دفتر پرانستل کېدو ته لار برابره او دنړۍ سره مو د روابطو جوړېدو يوه کوچنۍ کړکۍ خلاصه شوه نو اسلامي امارت هڅې وکړې چې دخپل ځان او خپلو موخو او ارادو نه نړۍ خبره او پرضد يې دشويو تبليغاتو دبدو اغېزو ازاله وکړي چې داهڅې بريالۍ وې خو ددې هڅو ډګر محدود و نو اغېزې يې هم محدودې وې.

خو چې امريکا سره مذاکرات پيل شول، تر ۱۰ مياشتو وغځېدل؛ دجنګ پای ته رسېدو او دافغانستان نه دبهرنو ځواکونو

پروتلو اتفاق رامنځته او خبره دنهايي تړون تررامنځته کېدو راورسېده اوبيا دامريکا ولسمشر ټرمپ په يو ټويټ دا ټولې هڅې او بهير رد کړ نو خبره له محدود ډګر نه راووته او اسلامي امارت چې څه ښکاره کول غوښتل هغه ټولې نړۍ ته ښکاره شول.

ټولې نړۍ ته روښانه شوه چې طالبان جنګ خوښوونکي ندي بلکې جنګ پردوئ تپل شوی او دوئ دقابضو ځواکونو په مقابل کې ددفاع جنګ روان ساتلی.

نړۍ ته دا هم روښانه شوه چې طالبان دخپل ملت لپاره سوله او دامن ژوند غواړي؛ دټولې نړۍ سره ددښمنۍ او جنګ نه بلکې دښو روابطو غوښتونکي دي؛ دشريعت په چوکاټ کې دننه دبشر حقوقو ته تربل هرچا زيات ژمن دي؛ دملت ټول بچيان ددينې او عصري علومو په ګانه ښه سمبال غواړي او دهېواد او ملت مادي او معنوي پرمختګ يې لويه هيله ده.

نړۍ اوس پدې هم ډېره ښه پوه شوه چې طالبانو چې دانساني تاريخ دتر ټولو ستر غربي اتحاد پرضد تر ۱۸ کلونو پورې جنګ جاري وساتلو له هرې ورځې نه بلې ته برلاسي شول او دجنګ په ډګر کې يې دې ستر دښمن ته شکست ورکړ نو تراوږدې زمانې پورې ددې جنګ دروان ساتلو توان هم لري خو بيا هم دسولې او خبرو له لارې دستونزې حل غواړي او د خبرو له لارې ددې ستونزې دحل توان هم لري.

طالبانو چې دامريکا دخورا لوړې درجې ديپلوماتان سياسيون، فوځي مشران او پوهان تر ۱۰ مياشتو له ځان سره په مذاکراتو کې مصروف وساتل؛ خبره تر ۹ پړاوونو ورسېده چې ځنې پړاوونه يې تر ۱۶ ورځو هم اوږد شول؛ پدې هر پړاو کې

طالبانو د الله تعالی په نصرت او دخپل عالي استعداد؛ ښه جرأت؛ معقول موقف او ښخو دلایلو له لارې په هر پړاو کې مقابل لوری خپلو غوښتنو ته اړ کړیدي چې دې ددیپلوماسۍ په ډګر کې دطالبانو لوړ استعداد ټولې نړۍ ته داسې ښکاره کړ چې دطالبانو ټول دښمنان پرې هم اعتراف کولو ته اړ شول. دمذاکراتو دې بهیر چې دطالبانو دحقیقت نه ټوله نړۍ ښه خبره کړه نو ترڅنګ یې دامریکا اصل څېره هم ټولې نړۍ ته ښکاره کړه.

ټولې نړۍ ته ښه روښانه شوه چې په نړۍ کې له امریکا بل لوی د بشریت دښمن او دانسانیت قاتل نشته؛ امریکا ته له هر څه زیاتې خپلې ګټې مهمې دي؛ امریکا دموخو دپوره کېدو په لار کې که دانسانانو قتل عام روان وي امریکا یې هیڅ پروا نه لري.

نړۍ ته دا هم ښه روښانه شوه چې امریکا یواځې پرجنګ او دزور په کارولو عقیده لري او په خپل دښمن دغلبې لپاره یې همدا جنګ یواځنی انتخاب دی؛ په انساني ټولنې کې دامن، سولې انسان دوستۍ او بشر پالنې ټولې خبرې دانسانانو دغولولو هڅې دي او بس.

نړۍ ته دا هم ښه روښانه شوه چې امریکایان هیڅ داعتماد وړ خلک ندي، کله یې چې ګټو ته ګواښونه متوجې شي بیا له هرڅه تېرېږي او د وعده خلافۍ، عهد ماتولو؛ دکړو ژمنونه دوروسته کېدلوله امله هیڅ شرم نه محسوسوي اوپه داسې هیڅ شي ځان هیڅ ملامت نه ګڼي؛ نړۍ کې دخپل اعتماد جوړولو لپاره ملتونه اوهېوادونه ډېرې هڅې کوي اوداعتماد دلاسته راوړلو لپاره له ډېر څه تېرېږي خوبرعکس امریکا بیا په ډېرو وړو خبرو هم خپل اعتماد دخاوروسره خاورې کوي.

چې دا د امریکا لپاره دډېر ستر تاوان خبره ده خو دامریکا له بده مرغه چې داعتماد اوبې اعتمادۍ داخبرې ورته هیڅ ارزښت نه لري اونه پرې ځان پوهوي.

امریکا دپلان جوړولو کمزوري هم ښه واضحه شوه او هر څوک پدې پوه شو داسې نده چې دامریکا هرپلان به کامیاب وي؛ مذاکرات دامریکا غوښتنه وه خو پایله یې دامریکا لپاره سخته تاواني شوه.

امریکا پدې ښه پوهېږي دمذاکراتو په پرتله یې دجنګ روان ساتلو زیانونه ډېر ستر دي داهم ورته ښه معلومه ده چې مجاهدین دجنګ نه ستړي کېدونکي خلک ندي اودخپلوعالي اهدافو دحصول لپاره تر پېړیو هم جنګ کولوته چمتو دي؛ نوامریکابه بېرته مذاکراتو ته راستنېږي؛ طالبانو ته به دمذاکراتو د بیا پیلولو غذر زارۍ کوي او ټول هغه څه به مني چې طالبان یې ترې غواړي. ان شاءالله تعالی.

## د جنابت حالت کې مه ویده کېږئ

#طالب الهام

**هغه کړنې چې، رسول الله ﷺپه سلګونو کلونه وړاندې ترسره کړې، ساینس پوهان او پرمختللې نړۍ یې اوس ثابتوي چې، د انسان په ګټه دي.**

**(سبحان الله) طبي څېړنو ثابته کړې ده چې، د هډوکو، د ملا د تیر کړّیو او ملا د دردونو لومړی لامل جنوب او بې له غسل کولو څخه ویده کېدل دي.**

**ځکه ساینس دا ښودلې ده چې، له کوروالي څخه وروسته د انسان د ملا په تیر راچاپېر او په ملا کې مني وچیږي چې، همدا د تنکیو هډوکو د خوړلو، ملا درد او د ملا د تیر په کړیو د پرله پسې دروندوالي او بوج لامل ګرځي؛ خو کله چې، انسان د غسل یا اودس کولو لپاره پاځیږي؛ نو د وینې خوځښت او ګځېدل یې له سره پیل شي، اندامونه د خپلو دندو سرته رسولو لپاره چمتو شي او د ازغن پړي یا د لویې عصبي پولې په مټ مغزو ته ډېره او په تکراري ډول وینه روانه شي او دماغ د همدغې لویې عصبي پولې له لارې چې، د ملا له تیر سره یو ځای تېره شوې ده، خپلې عصبي دندې وویشي او بیا یې پیل کړي.**

**په صحیح حدیثونو کې ذکر شوي دي چې، رسول الله ﷺکله هم نه دی جُنب شوی مګر دا چې، غسل یې کړی دی او یا یې اودس کړی دی؛ خو له سهار څخه د مخه یې بشپړ غسل کړی دی او بیا یې لمونځ کړی دی.**

**عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنُبًا فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ تَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ. (رواه مسلم) ژباړه: له عایشې) رضی الله عنها (څخه روایت دی چې فرمايي: د رسول الله ﷺطریقه وه چې د جنابت په حالت کې د خوراک او خوب اراده وکړه، داسې اودس یې ترسره کوه، څرنګه یې چې، لمانځه لپاره اودس کوو.**

**د رحمت پرښتې جنوب ته نه نږدې کیږي! عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا: قال رَسُولُ اللّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَ آلِهِ وَ سَلَّمَ: ثَلَاثَةٌ لَا تَقْرَبُهُمْ الْمَلَائِكَةُ جِيفَةُ الْكَافِرِ وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوقِ وَالْجُنُبُ إِلا أَنْ يَتَوَضَّأَ. (رواه أبو داود)**

**ژباړه: رسول اکرم ﷺفرمایلي: -درې ډوله خلکو ته پرښتې (د رحمت ملایکې) نه نږدې کیږي! د کافر مړي ته، په هغه خوشبو لړوونکي چې، د زعفران رنګ یې ورسره ګډ کړی وي) ښځو سره یې مشابهت غوره کړی وي (او جنوب ته مګر چې، په هغه صورت کې چې، اودس وکړي.**




# دقطر سوبه

عابد

سیاست ځیني پوهان دشطرنج لوبه ګڼي، ځیني یې لکه د مرحوم الفت صیب په څېر دروغ، دوکه او یوبل غولول بولي نوموړی دسیاست تعریف داسې کوي:

وایه یوځه، کوه بل څه

په شپه کې دلمر رڼاښیه، په ورځ کې دتور تم ننبې

شکره لکه مرچ خوره، مرچ لکه شکره...

دهمـدې نظریـې پلویـان ډېـر دي او د سیاسـت پـه رښتینولۍ او وېسابې باوره دي، ولې بیا هم یوه لویه برخه پوهان یې دهرچاکار نه بولي او وایي خورا د ذهین، وسیع اوجامع فکر خاوندان سیاست پرمخ وړلی شي...

په هر صورت دافغانستان قضیه هم له نظامي اړخ سره سره یوه خورا اوږدمهاله سیاسي معضله ده چې نـږدې څلوېښت کاله وشول د یوه انقلاب دپیل له شامته لا هم دا هیواد په کرار نه دی په داسې حال کې چې اوس نه هغه انقلابیون پاته دي اونه یې هم هغه مرستندوی په هماغه نامه شته چې دوی یې په مټ دانقلاب نشه اخیستې وه.

دنړۍ په هره برخه کې دسیاسي خوځښتونو او سیاسي جریانونو جهت معلوم وي چې وروستۍ نتیجه یې هم څرګنده وي، خودافغانستان دقضیې جهت له تېرو څلورو لسیزو راهیسې ډېرمغلق او پېچلی دی، په دې معناچې دنړۍ ډېر نوموتي شطرنج باز سیاسیون دلته ناکام شوي او رخ ترې په بله تللی.

ددې قضیې د وروستیو دوو لسیزو سیاسي مجرا چې دنظامي حل له ناکامۍ وروسته ورته مخه شوه هم دنړۍ له ډېرو نورو سیاسي جریانونو خورا بدله او بل رنګ ده.

پـه دې وروسـتیو کـې چـې دامریکامتحـده ایـالاتو لـه طالبانو سره مذاکراتو ته تن کېښود او په قطر هیواد کې یې له دوی سره دلسو میاشتو په اوږدو کې دمذاکراتو په دوران کې کوم تنزل او انحطاط ښکاره کړ، ډېری حقوق پوهان ورته حیران و چې ولې د امریکا متحده ایالاتو له طالبانو سره په دښمني کې ۱۸۰ درجې شاګرځ وکړ؟.

شنونکي د دغو مذاکراتو د وروستۍ نتیجې په اړه چې "ټرمپ" په یوه ټویټ لغوه کړل، بېلابېل توجیهات کوي او مختلف اسباب یې بیانوي چې یاخو ده په امریکا کې پرځان دنیوکو دخلاصون لپاره یا پرطالبانو دفشار دزیاتېدو اویاهم دتوافق دځای داختلاف په سر ترسره کړ.

خو هغه علت چې ډېری شنونکي یې عمده او اساسي علت بولي دا ښیي چې په کیمپ ډیویډ کې داشرف غني، طالبانو او ټرمپ دناڅاپي لیدنې پلان و چې طالبانو خنثی کړ او دموافقت نامې له امضاء مخکې یې دغه لیدنه لغوه کړه چې په حقیقت کې مذاکرات بیا ټرمپ نه بلکې طالبانو لغوه کړي...

همدا دلیکنې مطلبي ټکی دی، چې څنګه یوداسې چا دوخت مکاره امریکا په سیاسي چنو کې راګیر کړه چې له مدرسو راوتلي او ترډېره دا ګومان پرې نه کیږي چې هغوی دې د سیاست په دومره باریکیو کې وړاندې لاړ شي او ترپایه دې هدف له لاسه ورنکړي، په داسې حال کې چې معلومیږي مقابل لوري یې یو داسې دام ورته ایښی و چې ګومان یې کاوه په ناوړه ډول به پکې راګیر شي، څکه یې په یوه او بله بهانه دومره اوږده مذاکرات لغوه کړل، همدا دطالبانو سیاسي بصیرت ښیي چې دوخت دښمن ته یې ډېر ستر سیاسي ګوزار ورکړی.

که سیاست " په شپه کې د لمر دړنا ښودنه او په ورځ کې دتورتم نښې" نه شي او په حقایقو ولاړ وي، نو بیا به پکې هغه لوری هم برنده وي چې په ظاهره د نني دنیا سیاست پوهان نه بلل کیږي اویواځې د نظامي ډګر زمریان وي.

داچې په نظامي ډګر کې داسلامي امارت جګړه ایز تکتیکونه، استقامت او رهبري هرڅوک مني او په خارق العاده ډول یې دنړۍ پرمختللې قواوې په افغانستان کې ماتې کړې او اوس هیڅوک شک نه کوي چې اسلامي امارت په نظامي ډګر کې امریکا ماته کړې.

دقطر د مذاکراتو اوږده پړاو چې دامریکا دمتحده ایالاتو خورا لوړ پوړي مرکچیان پکې و او ډېر باریک او دقیق جریان یې درلود، او دامریکا ولسمشر په ناڅاپي او غیر مترقبه ډول ختم کړل، دا ښیي چې دامریکایانو وروسته ځانته پام شوي چې دوی دلته هم بایلونکي دي، نو ځکه یې دخپل سیاسي اعتبار له ختمېدو سره بیاهم په دغه مذاکراتي جریان د بطلان کرښه راکاږله او مذاکرات یې لغوه اعلان کړل.

دغه ټول جریان اودجریان نتیجې ته په دقیق نظر او ژور فکر سره ویلی شو چې دقطر مذاکرات داسلامي امارت لپاره په نظامي ډګر کې له خورا لویو فتحو وروسته یوه ستره سیاسي سوبه وه نه دفرصت ضیاع.



# د غرب له اسلام سره دوه مخي!!

غرب په اصل عمل کې له ټول اسلام سره په هر اړخیزه دښمنۍ بوخت دی خو په ظاهر کې بیا له ټولو اسلامي ملکونو سره ښه روابط او خصوصا له ولسونو سره مالي مرستې او د ژوند د معیار د لوړوالي لپاره کار کوي ـ یعنې په حلوا کې زهر خپروي.

دوی مسلمانان په دوه برخو کړي ـ یو هغه چې اصلې اسلام باندې باور لري او د ژوند په ټولو برخو کې ځان اسلام ته تسلیم ګڼي او یواځې د الله په قانون یې تکیه کړې.

دغه مسلمانان د امت په یو والي او په یوه محوري واحد حکومت قائل دي له نورو ادیانو سره هیڅ مشارکت نلري ـ دعوت یې د ژوند اصل دی او ددې نه په دفاع جهاد د حل لاره ګڼي، کوي یې او پدې لاره کې مرګ ویاړ ګڼي ـ

دوهم هغه اسلام چې یهودیانو او کلیسا د خپلو قرنونو هلوځلو، د استشراق، استعمار او جنګونو په مټ په مسلمانانو منلئ. دغه ډول اسلام په الهي وحی او نبوي تعلیماتو نه بلکې د خلکو په خوښه او دیموکرات اسلام دی.

چې د قوانینو مصدر یې قران نه، بلکې ـ د خلکو اکثریت او خلکو فیصله پکې اولیت لري ـ دغه نوعه اسلام ټولو انسانانو ته په یو نظر ګوري هیڅ دین تر بل دین غوره نه ګڼي یو مشرک او یو مسلمان حقوق مساوي ګڼي.

پدغه اسلام کې جهاد ـ ولاءاو براء ـ د حدودو تطبیق، دې او دیته ورته اعمال ردوي او په خلاف یې فتوا ورکوي ـ

دې اسلام کې دا ازادي هم شته که د اسلام سره سره کمونیزم، لیبرالیزم، دیموکراسي، هیومنیزم او نشنلیزم او یا کومه بله نظریه او دین هم ومنې نو نو بیا هم مسلمان پاتې کیږې ـ په هیڅ مشارکت د نورو ادیانو باندې د مسلمان نوم در څخه نه لرې کیږي ـ

له دغه نوعه اسلام او مسلمانانو سره (بشري حقوق، نړیوال اعلامیږي، ملګري ملتونه، د امنیت شوری، ناټو، اروپایی اتحادیې) هیڅ نوعه دښمني نلري بلکې د دوی د ژوند د معیار د لوړوالي لپاره په زرګونو موسسې کار کوي ـ

خو غرب له اصلي اسلام سره دښمني لري په خلاف یې میلیاردونه ډالر مصرفوي هر رقم خطرناکه او زهرلیه باروت استعمالوي، د مرګ له ټولو وسیلو ـ ټانګ توپ طیاره، زهر ترور، زندان او دیته ورته استفاده کوي

نور بیا....



# امریکا به بالآخره هم مذاکراتو ته کښیني

کبیرخان خلجي

له شاوخوا یوه کال راهیسې د امریکا متحده ایالاتو د افغانستان د جګړې ختمولو په اړه له طالبانو سره مذاکرات کول. دا مذاکرت د تېر ۲۰۱۸ز کال د جولای میاشتې په اخیر کې د ټرمپ په امر تر هغه وروسته پیل شول چې د ۲۰۱۷ز کال په اګست کې د جنوبي اسیا او افغانستان لپاره د امریکا معرفي شوې ستراتیژي ناکامه ثابته شوه.

طالبانو حتی په ۲۰۰۱ز کال کې، د امریکا لخوا د افغانستان تر اشغال وړاندې، د اسامه بن لادن پر سر مذاکراتو ته چمتووالی ښوده او په وار وار یې د جګړې له بدو عواقبو نړۍ او امریکا وېرول. خو له بده مرغه، امریکا او نړۍ هغه زرینه موقعه له لاسه ورکړه؛ جګړه یې پیل کړه، لسګونه زره خلک پکې ووژل شول، خو امریکا او نړۍ هیڅ ترلاسه نه کړل.

د مذاکراتو په اړه د امریکا او طالبانو دریځونه له پیله متفاوت وو. طالبانو د لوېدیځ په لاس جوړ شوی کابل حکومت د امریکا ګوډاګی باله او حتی غیررسمي مذاکراتو ته هم ورسره چمتو نه وو؛ یوازې له امریکا سره یې خبرې غوښتې.

امریکا بیا ټینګار کاوه چې طالبان باید له همدې کابل حکومت سره مذاکرات وکړي او دوی به د منځګړي رول پکې لوبوي. د طالبانو دریځ اوس لا هم هماغه دی، خو امریکا تر ټول زور ازمایلو وروسته مجبورا له خپله دریځه پر شا شوه، او له طالبانو سره یې مخامخ خبرې پیل کړې.

د تېر یوه کال په موده کې د دې مذاکراتو لس پړاوونه ترسره شول، او دواړه لوري هوکړې ته سره پکې ورسېدل. خبره یوازې د هوکړې د لاسلیک اعلان ته پاتې وه چې امریکا نابېره له مذاکراتو پر شا شوه – حتی د مذاکراتو لپاره د امریکا ځانګړی استازی او ټیم یې هم له دې اعلانه ناخبره وو.

د امریکا ولسمشر ـ ډونلډ ټرمپ د روان ۲۰۱۹ز کال د سپټمبر په ۸مه، په یوه ټویټ کې وویل چې د طالبانو په یوه برید کې د یوه امریکايي عسکر او ۱۱ نورو کسانو د وژل کېدو له امله یې دا مذاکرات ودرول. دا استدلال له ورایه غیرمنطقي برېښي، ځکه هوکړه لاسلیک شوې لا نه وه، او دواړو لورو پر یوه بل بریدونو ته زور ورکړی و. تر دې پېښې وړاندې نور امریکايي سرتیري هم وژل شوي وو، خو ټرمپ هغه مهال چپ و.

د ټرمپ تر اعلان وروسته، د امریکا د بهرنیو چارو وزیر، مایک پامپیو، وویل چې په یوازې په تېرو لسو ورځو کې یې زر طالبان وژلي دي. دې څرګندونو د ټرمپ لخوا د مذاکراتو درېدو لامل نور هم بې اعتباره کړ. دا کوم منطق دی چې یو ځوک دې ځان ته د زرو انسانانو د وژلو اجازه ورکوي، خو بل دې نه پرېږدي چې هغه عسکر یې ووژني چې د ده په وژلو پسې راغلی وي؟

بهر حال، ښکاري داسې چې ټرمپ پر خپل دریځ د طالبانو له ټینګاره او د امریکا شرطونو ته د نه غاړې ایښودو له امله غوسه شوی دی. خو د مذاکراتو درېدو له امله هره ورځ لسګونه انسانان وژل کیږي، چې دا باید امریکا یو ځل بیا پر خپل نابېره اعلان باندې غور ته اړه کړي.

امریکا عموما، او ټرمپ خصوصا، له طالبانو سره د هوکړې له لارې هغه څه ترلاسه کول چې متحده ایالاتو غوښتل: له افغانستانه وتل او پر امریکا د برید نه کېدو تضمین. د افغانستان وضعیت ته په کتو دا هوکړه هم د افغانستان، هم د امریکا او هم د سیمې په ګټه وه، چې له همدې امله یې د نړۍ د سترو ځواکونو او سازمانونو ملاتړ راخپل کړی و، او اوس یې هم پر نهایي کېدو باندې ټینګار کوي.

په هوکړه کې داسې هیڅ څه نشته چې امریکا ته له یوه شرم پرته – ماتې – بل زیان ولري – هغه هم داسې شرم دی چې که هوکړې وي او که نه امریکا په هیڅ صورت ځان ترې نشي. خلاصولای. امریکايي عسکر به په ارامه وتل، د طالبانو لخوا به بریدونه نه پرې کېدل. همدارنګه د بهرنیانو له وتلو سره سم به بین الافغاني مذاکرات پیل کېدل، چې هلته به بیا اوربند د خبرو مهمه برخه وه. د وروستي امریکايي عسکر تر وتلو شایي افغانان د یوه اسلامي حکومت په جوړولو سلا شوي وو، او په دې ډول به افغانستان له څلوېښت کاله جګړو وروسته د ارام ساه اخیستې وه. خو، د ټرمپ نابېره اعلان هر څه په لغته ووهل.

په پای کې، دا باید هېره نه شي چې امریکا د افغانستان جګړه یوازې د مذاکراتو له لارې ختمولای شي، چې پخپله هم په همدې خبره ښه پوهیږي. نن وي که سبا، امریکا به له هېواده وځي خو ځومره چې ژر ووځي، هغومره به هم د امریکا، هم د افغانستان او هم د سیمې په ګټه وي. امریکا به اخیر هم بېرته د مذاکراتو میز ته راځي ځکه یوازې همدا یوه ګټمنه لار ورپاتې ده.

# دا افغانان لکه چې اوبو راوړي دي!

◻ لیکوال احمد منصور

ویل کېدل چې دغه اونۍ به د امریکا او طالبانو ترمینځ د سولې توافقنامه نهایي او د دواړو لوریو لخوا بـه لاسلیک شي، هیلې او امیدونه زیات ول، خو دغه امیدونه هغه وخت مړاوي او له مایوسۍ سره مخ شول چې کله د ټرمپ لخوا د سولې مذاکرات لغوه اعلان شول او لامل یې په دې روستیو کې په هېـواد کـې د طالبانو لخوا امریکایي فوځیان وژل وښودل شو.

د ټرمپ لخوا دا ډول ټویټ کول ډېر سوالونه را پیـدا کـړي، دا سوالونه طالب لوري نه، بلکې د هیـوادو سیاسي شـنونکي او لیکوالان کوي، اکثره په دې آند دي چې امریکا د نظامي ډګر تـر څنګ په سیاسي ډګر کې هم ماته وخوړه او ویـې نـه شـو کـړای چې په طالب مشرانو خپلې غوښتنې ومني.

زما په آند طالب مشرانو چې څه غوښتل هغه یـې تـر لاسـه کړل:

۱- امارت یې په نړۍ ومانه.

۲- له یو شمېر هېوادو سره یې سیاسي اړیکې جوړې کـړې او سفرونه یې ورته وکړل، لکـه روسـیه، چـین، ایـران، انـدونزیا، ازبکستان او نور.

۳- په نړۍ او خصوصا پـه امریکـا یـې دا ومنلـه چـې دوي مستقل دي د هیڅ هېواد اثر او رسـوخ پـرې نشـته، لنډه دا چې طالبان په سیاسي ډګر کې هم ښه وځلېدل.

راځـم خپلـې موضـوع تـه آیـا د یـو امریکـایي پـوځي وژل کېدل، باید دې حد رسول شوي وای چې د یو کـال خـوارۍ پـرې عبث بلل شوي وی؟ او آن تردې چـې ټرمـپ لـه همـدې املـه مـذا کرات لغوه کړي؟

زما په آند د ټرمپ دا ډول پرېکـړه د نومـوړي حماقـت را پـه کوته کوي، څکه چې د مذا کراتو وړاندیز دوي کـړی و، طالبـانو نـه و کـړی، طالبـان خـو د دوي پـه وړانـدې پـه نظـامي مبـارزه بوخت ول.

که د فوځیانو وژل دوي په غوصـه کـړي وي، دغـه غوصـه یې بې ځایه ده، دوي ته باید وویل شي چې ولې دا افغانـان اوبـو راوړي چې هره ورځ پرې چاپې اچوې شهیدان کوئ یـې، اسـیران کوئ یې، کورونه، جوماتونه، مدرسې یې ورسوزوئ؟

په دې روستیو کې د هېواد په یوشمېر ولایاتو کې په اولس مېشته ځایونو یې بمبارۍ ښکاره او ژوندي ثبوتونـه دي چـې پـه اړه یې آزادو رسنیو خبرونه رسنیز کړي هم دي.

ټرمپ دې په دې پوه شي چې افغانان ظلـم نـه شي برداشـت کولی!

ستاسو په پوځیانو بریدونه د هغو وحشتونو او جنایتونو غبرګ اخستل وه، چې ستاسو لخوا تر سره شـوي وه، چـې افغـان ولـس واخست، او په راتلونکي کې به هم د ورتـه نـورو بریـدونو نـړۍ شاهده وي ان شاء الله.

بهتره به ستاسو لپاره دا وي چې نور له خپل ضده تېر شـئ، په خپلو پوځیانو احسان وکړئ، خپل څنګ ته یې در ولئ، د خپلو اسـلافو ناکـاره تجربـې مـه تکـراره وئ، دا هېـواد چـا هـم خپلـه مستعمره نه ده ګرزولې، په دې پوه شئ چې دا اولس په وژلو نـه ختمېږي، دلته چې ماشوم پیدا شي لـومړی یـې پـه دواړو غـوږو کې آذان کوي یعنې په وړکوالي کې هغـه تـه دا درس ور ښـودل کېږي چې لوی الله تعالی دی، له هغه پرته چاته سر مه ټیټوه.

ټرمپ دې په دې وپوهېږي چې له داسې ملت سره په جګـړه بوخت دی چې مرګ ځان ته دومره خوښوي لکه دوی چـې د دنیـا ژوند او مزې خوښوی

# کیدای شي ډیری یې ونه منې!

میوند جمال

**د امریکا سیاست، داخلي او نړیوال تروریزم:**

د ستمبر هغه کنفرانس چې یا مو ندی اوریدلی یا مو د ۱۱ ستمبر حالاتو له ذهنه او گمانه ویستی:

د امریکا د دفاع سیکرتر رمسفیلډ په ۱۰ سستمبر په یو خبري کنفرانس کې ویلي ول چې د پنتاگون څخه د پاسه ۲ ټریلیونه ډالر نا درکه شوي دي هماغه ؤ چې د دې خبرې نه تقریبا ۳۰ ساعته وروسته په پنتاگون د طیارې حمله وشوه او هماغه خونه یې. ویجاړه کړه چیرته چې د څه د پاسه ۲ ټریلیونو ډالرو حساب پروت ؤ او دغسې یې د رمسفیلډ دغه خبرې کانفرانس د امریکایانو له ذهنه او فکره هیر او بیخي لرې کړ.

یاده دې وي چې هیوادونه د خلکو د تیر ایستلو لپاره هغه څه کوي چې د ننداړچیانو یا عامو خلکو په پشتونو کې هم هغسې پلانونه نه وي تیرشوي نه به تیر شي، په بله معنی (حکومتونه خپل هدف ته د رسیدو په خاطر د داسې چارو لاس اخلي چې خلک پرې زر یقین کوي). .

د رونالډ ریگن د حکومت په دوره کې د اقتصاد دوزارت معین د (هو ور انستي ټیوشن، انډي پینډنټ انستي ټیوټ، کېوټي انستي ټیوټ ادارو غړی او د مشهورې امریکائي ورځپاڼې وال سټریټ جرنل اداري مشر، مشهور لیکوال او شناند پاّل گریگ رابرټسن د ۱۱ ستمبر واقعه په ډیرو قوي دلائلو سره ردوي، هغه د ۱۱ ستمبر د واقعې په باره کې ډیر څه لیکلي هغه د خپل کتاب په اخره کې داسې لیکي:

تاسو څه پوه شوئ او یا داسې کوم شواهد لرئ چې د ۱۱ ستمبر واقعه مسلمانانو کړې ده؟

ایا تاسو په دې خبر یئ او یا هم دا درته معلومه ده چې په نیویارک کې په ۱۱ ستمبر ۲ نه بلکې ۳ تجارتي بلډنگه تباه شول؟.

ایا تاسو د ۳ بلډنگ د تباه کېدلو څخه خبر او هغه مو د را غورځیدلو په وخت کې ولیده؟

تاسو په دې څنگه یقین کولی شئ چې دوه طیارې دې هغه دوه تجارتي مرکزونه د زمکې سره برابر کړي خو بله طیاره بیا د پنتاگون دیوال هم نشي خراپولی؟

تاسو او د نړۍ نور خلک په دغه خبرو څکه یقین کوئ او دا منئ چې تاسو ته د امریکا حکومت د تلویزون په پردو او هلته د مخکې نه په نصب شویو کمرو هغه څه در وښودل چې هغه د امریکا حکومت غوښتل چې تاسو یې و وینئ؟

ایا تاسو ته د امریکا حکومت او هلته د مخکې نه په لگیدلو کمرو هغه دریم تجارتي بلډنگ در وښود چې په همدغه وخت د دغه دوو نورو تجارتي مرکزونو سره په یو وخت کې یو ځای تباه شو؟

نه! تاسو هیڅ وخت هغه دریم بلډنگ ونه لید او نه هم د دې نه خبر شوئ چې هلته یو بل او دریم بلډنگ هم د دغه دواړو سره یو ځای وران او په ځمکه را وغرځید څکه تاسو یواځې دوه طیارې او دوه بلډنگه ولیدل او حکومت همدا غوښتل چې تاسو یې و وینئ؟

حکومتونه د خپلو گټو لپاره همیشه دروغ وائي او کله چې هغوی د خپلو موخو او گټو لپاره دروغ وایي نو بیا داسې دروغ وائي چې عام وگړي یې بیا هغه سل په سله رښتیا گڼي او په هغه دروغو د رښتیا او نه پټیدونکي حقیقت یقین کوي، حکومتونه تل د عامو خلکو په سترگو کې خاورې شیندي، په حکومتي ادراو کې لوړ چارواکي خپلو ما تحتو ته تل دا وایي چې:

په خپل مقصد کې د کامیابیدلو په خاطر خلکو ته په داسې ډول فریب ورکړئ چې هغوی پرې هیڅ پوه نشي.

یادونه: د ۱۱ ستمبر په واقعه کې د ۳ بلډنگ د را غورځیدو په هکله ۵ فیصده امریکایان هم نه ول خبر تر د چې په دې واقعه څو. کاله تیر شول او وروسته بیا سوالونه را پیدا شول.




از عبد الله بن عمرو رضی الله عنه روایت است کـه گفـت: مردی از رسول الله صلی الله علیه وسلم پرسید:

«أَيُّ الإِسْلاَمِ خَيْرٌ؟ قَالَ: تُطْعِمُ الطَّعَامَ، وَتَقْرَأُ السَّلاَمَ عَلَى مَـنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ» (رواه بخاری)

ترجمه: اسلام چه کسی بهتر است؟ فرمود: اسـلام کسـی که به آشنا و بیگانه سلام گوید و طعام دهد.

مفهوم حدیث

این حدیث شریف متضمن دو امر می‌باشد: یکی طعام دادن و دیگری گفتن سلام به کسی که آن را بشناسی و یا نشناسی. این دو امر از مبدأ اسلام سرچشمه گرفته و این نظام اسلام اسـت کـه ارتبـاط پیـروان خـود را بـه دوسـتی و محبـت، وحـدت و یـک پارچگی چنین تنظیم کرده که هرگاه دو مسلمان باهم رو برو شوند و لو باهم معرفت نداشته باشند، اما منحیث یک مسـلمان بایـد بـه یک دیگر سلام بدهند و سلام به معنای دعای خیر است، چنانچـه گفتـه مـی‌شـود «اَلسَّـلاَمُ عَلَـيْكُمْ وَرَحْمَـتُ اللـهِ وَبَرَكَاتُـه» یعنـی سلامتی، رحمت و برکات الله سبحانه وتعالی برتـو باشـد. گرچـه حکم آن سنت است؛ لیکن به واسطهٔ سلام گفتن، محبـت مسـلمان در دل مسلمان ایجاد می‌شود، ماننـد ایـن کـه تحفـه دادن محبـت تحفه‌دهنده را در دل برادر مسلمانش ایجـاد مـی‌کنـد. پـس کسـی برای شما دعای خیر می‌کند، لازم است که شما نیـز بـرایش دعـای خیر داشته باشید؛ زیرا جزای احسان احسان است. از همین لحاظ در اسلام عزیز حکم جواب سلام واجب می‌باشد....

اما در قسمت طعام دادن باید گفت که از یک طرف توسـط آن ضرورت شخص بیچاره و یا فقیر مرفـوع مـی‌گـردد و از سـوی دیگر مسلمان ذریعهٔ آن رضایت الله سبحانه وتعـالی را بـه دسـت می‌آورد. بدین اساس اسلام عزیز بالای سرمایه‌داران، دور ساختن ضروریات فقراء را واجب قرار داده و دولت اسلامی توسط سلطه و قدرت خود آن را عملـی سـاخته، زکـات و صـدقات مـال را از صاحبان ثروت گرفته، برای فقراء توزیع می‌نماید. لـیکن اگـر در میان مسلمانان دولت اسلامی موجود نباشد، ثروت‌مندان خودشان به طعام دادن فقراء و مرفوع ساختن حاجات آن هـا اقـدام نماینـد، بالخصوص در این زمانه که مسلمانان دولتی ندارند، مراقب حـال شان باشد، زکات را از ثروت‌مندان گرفتـه و بـرای فقـراء توزیـع نماید، حتی در سرزمین‌های مسلمانان چنـین دولتـی اصـلاً وجـود ندارد که به مرفوع ساختن ضروریات فقراء اقدام نماید. بنابر این، برای ثروت‌مندان مسلمان لازم است تا در مـورد ادای زکـات کـه بالای‌شان فرض است تلاش نمایند و بر همه مسلمانان فرض اسـت تا در اقامهٔ دولت اسلامی کـه اللـه سـبحانه وتعـالی آن را فـرض گردانیده اقدام نمایند.

خلاصهٔ حدیث

شخص مسلمان توسط خیرات و صدقات فرضی و نفلـی بـه اللـه سـبحانه وتعـالی تقـرب حاصـل مـی‌نمایـد و ایـن امـر (ادای زکات) یکی از فرایض مهم بالای اغنیاء بوده که در وجود دولـت اسلامی از آن‌ها گرفته شده و به صورت منظم برای فقـراء توزیـع می‌گردد. اما امروز چون دولت اسلامی وجود ندارد، ثروت مندان مسلمان باید خودشان به این فریضه اقدام نمایند.



ټرمپه!

# افغانستان

## د خپلو کوراو د پردیو ګور دی

ليکنه: أبو إنعام حقاني

د ځمکې کوره کې د جنوبي اسيا يوه خړه پړه ډبرينه ټوټه چې د آسيا په زړهٔ هم ياديږي افغانستان دی، هغه چې ټوله آسيا يې له دردِه درد او له سکون نه سکون اخلي؛

ځکه خو د افغانستان په هکله علامه اقبال رحمه الله داسې وايي:

آسيا يک پيکرِ آب وګل است
ملتِ افغان در آن پيکر دل است
از فسادِ اُو فسادِ آسيا
در گشادِ اُو گشادِ آسيا

د جغرافيې له اړخ نه افغانستان د پاکستان، ايران، تاجکستان، ازبکستان، ترکمانستان او چين سره څه د پاسه پنځه نيم زره کيلو ميټره سرحد لري.

دغه له پېړيو پېړيو د ايمان او توحيد په رڼا ښکلی وطن، له مينې او محبت نه جوړ په جامه ملنګ او خاورين هيواد لکه څنګه چې پر خپله مجاهده سينه له دنګو او اسمانڅکو غرونو نه جوړ امېل او پکې لکه غمي د رڼو اوبو آب شارونه او آب حيات چينې لري همدا رنګه د تاريخ لمنه کې غرونه غرونه حماسې او کار نامې لري.

ټرمپه!

ته به ماشوم يا خو بيخي معدوم وې دلته ستاسو د پلرګنې تا ته ورته د افغانستان له نوم او تاريخ نه ناخبرو فرعون صفته امپراطورو اشغالګرو د زياتو سرو لښکرو په مټ يرغل را ووړ، هغوی هم ستا په شان خيال درلود تر څو د خپل زر او زور له لارې زموږ خاوره او زر هضم کړي، خپل ناولي افکار دلته دود او کفري قانون پلی کړي.

نه وو خبر څه خبر وو چې دلته ايمان د خلکو په وينه کې حل او جهادي ولولې يې لکه د لمر پلوشې پر سمو او غرونو را خورې دي.

دوی لا د دې ميوند ميوند کلي د اسمان څکو مغرورو غرونو په مسلمانو ډېرو او د څېريو په يخو غېږو کې د ارام ساه نه وه اخيستې چې د ميوندۍ ملالۍ د ټپې شور او د ايوبي غشو اور کې يې شيطاني ککرۍ نينې او وريتې شوې.

دلته يې ارمانونه ايره، وسائط، خولۍ او زغرې يې کباړ او پلنې امپراطورۍ يې د ابد لپاره پر بندو ماتې او ټوټه ټوټه شوې.

ټرمپه!

که چېرته ته د تاريخ حافظې ته ځير شې ښکاره خبره ده ته به دې پايلې ته ورسېږې چې ته له کوم واشنټن او هغه اولس سره نه يې مخ چې هغوی له انساني زاويې نه لري، د سپيو او بيزوګانو ناروا مينې او د فحشا وبا يې دومره ماغزه شنه کړي چې ستا غوندي مهمل او تش کالبوت ته هم د خاورې واک او د ملت سرنوشت سپاري.

نه داسې نه ده.

ته له هغه نه ماتېدونکي سنګين او ميړني اولس سره مخ يې چې د دين او وطن مينه يې رګونو کې له وينې سره جوړه جريان لري، له طاغوت نه بغاوت او په دې لاره کې مبارزه يې ځانګړې کمال دی.

تېرمېه!

هغه د چا خبره: لږ يې سره خوره، لږ را پرخود شه، لږ د سرټمبګۍ او باټو له خره نه کوز شه.

ته د جنګ ډګر نه زرګونه کيلوميتره په لرې نقطه کې قرار لرې، ته د شوراب له حماسې نه ناخبر يې، ته د صحرا باغ د درانه موټربم زلزلې نه يې خنګولی، ستا سترګو ستا ګرين ويليج په داسې حال کې چې د استشهاد د ابابيلو په لاس په تور ويليج بدل شوی وو له نږدې نه دی ليدلی، ستا سپږمو د زيرې ډبې د نابېره درز هغه بارودي بوی نه دی درک کړی کوم چې ستا عسکر او شوبلې په يوه وخت غبرګ فضا ته توغوي.



دلته وضع بل شانتې روانه ده، دلته هغه ګل ګلزار حالت او هغه سل په سلو کې سوبه او ديمکراسي لکه د هلمند خيالي پوليس هيڅ درک نه لري کوم چې ارګ کې ستا تالی څټو نانځکو تا ته پر ارغوي رسم کړې.

ستا د اشغالګر ځواک هغه زرګونه مړه، شل او شوټ عسکر چې تا به يې سر بند تابوتونه او نيم پاتې جسدونه خپله د سر په سترګو ليدلي وي، هغوی دلته څه د خوړو له وېش او د حلواوو له خوراک سره نه دي مخ شوي.

هغوی دلته د يوه مؤمن ملت د مقاومت له توند سېلاب سره لاس او ګرېوان شول.

دلته د هغوی پر ضد اولسونو قيام وکړ، دلته د تکبير ملکوتي چيغې دومره پر ازادۍ او ايثار مين زلمي د سر يودا ته را وپارول چې ستاسو په وينا ستاسو تاريخ کې تاسو سرزورو سره چا دومره اوږده مبارزه نه وه کړې.

عجيبه خو دا ده چې تيرو اتلسو کالو کې ستاسو بې رحمه اشغالګرو عسکرو دلته له هيڅ قسم وحشت او ظلم نه دريغ ونکړ.

دلته يې خپل ټول وس او ټوله پر مختللې قاتله ټکنالوجي وکاروله، دلته يې له کروز نه نيولې آن د مور تر بم پورې هر رنګه درانه او ړانده بمبارونه تر سره کړل.

دلته يې زرګونه انسانان شکنجه او د تورو تمبو شاته زولانه کړل، ستاسو د زيات زر او زور له کارولو سره سره بيا هم لله الحمد زموږ مقاومت لا نور هم د قوت او زلميتوب پر لور قدم وهي.

تاسو بايد درک کړئ چې زموږ مقاومت ايله بلوغ ته ورسېد، د ځوانۍ او زلميتوب سيزن يې اوس راروان دی.

تاسو که اوس هم لا هم پر هغه زاړه خره سپاره ياست نو د نويو دردونو او تابتونو تابيا ونيسئ، موږ د الله تعالی په نصرت د خپل هيواد د ازادۍ لپاره ستاسو پر ضد روان جهاد سل کاله نور هم توند ساتلای شو.

تېرمېه!

ته تېروتی يې، ته او ستا کرايه شوې غلامې حشرې که نن نه وي سبا به له دې کور نه په تور مخ وزئ. هغه څوک چې ستا ناسنجيده او ماشومانه ټوېټ ته چکچکې کوي، هغه ستا اجيران چې ستا په ډالرې جوشک او ستا د پتلانه په جيب پايي،

هغوی هیڅ کله نه غواړي چې ته یې له تې پرې کړې او تـه وړباندې د شوروا پیپ بند کړې؛

ځکه هغوی اوس دین، وطن او ضمیر سـتا پـه دې څـو بـې باورو ببرو ډالرو پلورلي، هغوی ښه پـوهیږي چـې نـور دوی دې خاوره کې د نوک ځای او د یوه شیبه قرار هم نه لري؛ ځکـه دوی د دې خاورې مالکان نه بلکه دوښمنان دي، دوی نور ستا له غمـه نه دي مړه دوی صرف تر هغو درسره دي تر څو چې ته ورته خولـه خوږوې.

تاسـو بایـد درک کـړئ، دوی چـې خپلـې خـوږې مـور (خاورې) سره وفا ونکړه نو تا سره به چیرته وفا وکړي؟

د ډالرو یارانه ژر به دړې وړې شینه.

نور ته او ستا غلامان دلته وخت نه لرئ؛ تاسو پردي یاست دا وطن د پردیو گور او د خپلو کور دی، هغه څوک چې ته یې په زور له دې کوره ایستل غواړې هغوی د دې خاورې بچیـان او دا یې کور دی هغوی نه ورکیږي.

ته پر عیاشئ دومره نه یې مین لکه څـومره چـې هغـوی لـه شهادت او قربانۍ سره مینه لـري، وینـو چـې د نـازک وجـود لـه غوښو او هډونو نه غشي جوړوي او پر تا یې اوروي دا هغه قـوم دی چې غرا یې غذا او په دې لاره کې درد یې سکون دی.

ستا له تویټ وروسته هغـوی پـه تېـره یـوه اونـۍ کـې اتـو ولسوالیو کې سپین اسلامي بیرغ رپاند او ستا ناولې دیمکراسي زېښدي کړه.

ټرمپه!

له بلې به دي خبر کړم، اریانا یـو عجیبـه بېـل انـداز لري، کومې د نـرۍ مستې امپراطورۍ چـې د اریانـا د رام کولو په اند راغلې، هغــوی نــه یــې لــومړۍ څرمنــې ایستلې او بیا یې د هغوی ځواکونـو او



هغـــــوی د خـــوارہ پیغمـــبر (صـلی اللـه علیـه وسلم) پر دې قـول ایـمان لـري چـې وايي:

حفـت الجنـة بالمکاره.

ښه خبره به دا وي بیرتـــه هغـــه د اوږو پـــوزه چـــې د مذاکراتو له برکتـه

ککرۍ همدارنگه دوی او غلامان سره پر دوې لارې کـړي، همـدا وجه ده چـې نـن سـتا د مړژوانـدې امپراطـورۍ او غلامـانو هـم وروستۍ سلگۍ دي.

نور دې د فرعوني خیالاتو وخت تېر دی، نور دې کوم جادو او جال اثر نه کـا نـور هغـه وخـت راغلـی چـې خپلـه شـوړیدلې دیمکراسي او بلا وهلي غلامان گـوډانې تـه واچـوې او غوړونـه خلاص کړې.

دي ممکن ترلاسه کړې وای او تا په یوه تویټ رنگه کـړه ولتـوې او د امپراطوریو له دې گورستان نه پښې سپکې کړې.

د زور د تیاکې او به دې نور وتلې پښتانه متل کا: چې ځې ځې ابازو له به راځې.

هر څومره که پراخ پراخ وغورځې اخیر به د خبرو مېز ته بیـا راځې او یا به په خږ مخ او ځوړنده څټ تښتې. ان شاء الله.

و ما ذلک علی الله بعزیز

# په نوي طرز د تدریس اړتیا او د هغه مؤثریت...!!



ليكنه: مولوي موسی فرهاد

د عربي ژبې مقوله ده چې وايي: « المعلم ما هو الا طريق التـدريس» اصلاً، ښه ښوونکی د تدریس طریقه ده.

او یـا دا چې: « طريقـة التـدريس تسـاعد فـى تحقيـق اهـداف التعليمية». د تعلیمي اهدافو د ترلاسه کولو لپاره ښه مرسـته کـوونکی د تدریس طریقه ده.

د نوې ټیکنالوژۍ له برکته نن سبا د ژوندانـه پـه هـره برخـه کـې تقریباً هر وګړی دې ته اړ دی چې پـه طبعـي شـکل، خـو حـتماً د نـوي ابتکار او نوښت په مټ خپل کار مخ ته یوسي. کچیرې څـوک د ابتکـار قوه ونلر او یا یې ونکړي؛ ممکن چې د موجـوده پرمختلـونکي عصرـ لـه قافلې نه وروسته پاتې او همدا یې د ناکامۍ لامل شی.

زموږ په دیني مدارسو کې که څه هم د پخوا په پرتلـه ډېـر زيـات پرمختګ شوی، خو لا بیا هم په ځینو برخو کې اړتیا شـته چـې پـر نویـو ابتکاراتو ډېر تمرکز وشي. چې یوه برخه یې د تدریس ډول دی.

دا چې موږ وایو په تدریسي سیستم کې دې له نوي ابتکاراتو کـار واخیسـتل شي؛ د دې مطلـب هیڅکلـه دا نـه دی چـې زمـوږ پخـوانی تدریسي نظام خدای مکړه ناکاره وو، نه داسې نه دی، هغه پخپـل وخـت کې په تمامه معنی مؤثر و او وخت په وخت یې د خپل عصرـ اړتیـا پـوره کړې ده.

مګر نن سبا ټول خلک په دې متفق دي چـې کـه چیـرې آسـاتذه (ښوونکي) د تدریس په لاره کې نور هـم پـر نویـو ابتکـاراتو او نوښـتونو تمرکز وکړي، نو په یقین سره چې هم به خپله مُدرِّس، هم به یې تـدریس او هم به یې شاګرد مثالي وي.

که څه هم د تدریس د طریقو او اسالیبو میدان ډېر پـراخ دی، خـو دلته به یې مختصراً د څو شیانو ذکر وکړو:

څرنګه چې لغةً او اصطلاحاً د تدریس مفهوم دا دی چې د اسـتاذ له لوري شاګرد ته د کتاب ښـوونه او د هغـه پوهـول دی. لهـذا د شـاګرد پوهول په مطلق (قرأ او سمع) لوستل او اوریدلو باندې نه راځـي، بلکـې داسې یو مثالي تفاعلي تعاون ته اړتیا وي چې په مټ یې کماحقه مطلـوب حاصل شي، او دا په معیـاري تـدریس ترلاسـه کیـږي. او د تـدریس پـه معیاري کیدلو کې د تدریس په طرز او طریقه کې د نوښت رول له پامـه نشي غورځول کیدای.

## معیاري یا مثالي تدریس څنګه وي؟

د دې لپاره مختصر ځواب دا کیـدای شي کلـه چـې یـو ښـوونکی (مدرس) په دې وتوانیږي چې په ریښتیني مانا، خو په آسانه توګـه خپـل شاګرد وپوهولای شي؛ نو دا یو معیاري تدریس بلل کیدای شي، او دا کار له وخت سره سم د تدریس په طرز او طریقو کې د نوښت له لارې امکان لري.

د استاذۍ او تدریس د اسالیبو ماهرین په دې عقیده دي چـې پـه هیڅ وخـت کـې دا سې یـوه جـامع طریقـه نشـته چـې هغـه دې هوبهـو، هرځای، په هره زمانه کې، د هر قسم شاګردانو او هر قسم مضـمون لپـاره مؤثره او کامیابه ثابته شي.

خو دا د یو مثالي استاذ تر کمال پـوري اړه لـري چـې هغـه څنګـه کولای شي چې د وخت د اړتیاوو سره سم یوه مناسبه طریقه خپلـه کـړي ترڅو د یو معیاري تدریس، مثالي ښـوونکي او بریـالي شـاګرد پـه نتیجـه هدف ترلاسه کړي. د دې لپاره لومړی د مدرس ځانګړتیـاوو تـه پاملرنـه پکار ده.

## د ښه مدرس ځانګړتیاوې:

د کامیاب او اغیزمن استاذ لپـاره لـومړی شرط دا دی چـې پخپـل عملکرد سره د شاګرد په زړه کې ځان ته ځای ومومي.

۱ - استاذ به درسګاه ته په غصه نه، بلکې په مسـکا او تبسـم سره ورځي، شاګردانو ته به د خوښۍ احساس ورکوي.

۲ - مدرس باید هرو مرو د وخت، نظافت، او نزاکت پابنـد و اوسي ترڅو عملاً شاګردان ترې اخذ وکړي.

۳ - په خپل فن او مضمون کې پوره مهارت او په عین حال کې لـه هغه سره دلچسپي درلودل.

٤ - ښوونکی باید د مدرس تر څنگ مربي هم و اوسي. شاگرد تـه د علم او معلوماتو د نقلولو ترڅنگ هغه ته تربیه هم ور نقل کړي.

٥ - استاذ باید فصیح او بلیغ وي، چې د نطق (خبروکولو) ښـه قـوه او په لنډه توگه د شاگرد د پوهاوي وړتیا ولري.

٦ - مدرس باید د کورنی مطالعې عادت پر ځان لازمي کړي، ترڅو پر درس باندې حاکم وي.

۷ - ښوونکی باید ابـداعي (نوښـتگر) فکـر لرونکـی وي، ترڅـو د شاگردانو د لټې او دل شکنۍ سبب ونه گرځي.

د مدرس لپاره پورتنی ځانگړتیاوې د بیلگې په توگـه ذکـر شـوې، کنه داسې ډېر صفات شته چې مدرس باید ورځیني برخمن وي، په دغـو صفاتو کې موږ د استاذ دا ځانگړتیا یاده کړه چې هغه به ابداعي نوښـتگر فکر لرونکی وي، مطلب دا چې د تدریس لپاره به د نوي طرز او طریقـو د موندلو وړتیا لري.

## د تدریس نوي اسلوب:

لومړی عملي میتود: پخوا به معمـولاً درس پـه نظـري شـکل ویـل کیده، یعني استاذ به خپل کتاب ته کتل عبارت به یې ویل او ترجمه کول به یې، شاگرد به خپل کتاب ته کتل او سمع به یې کوله، لـه داسې عمـلي میتود نه به کار نه اخیستل کیده، چې استاذ د بورډ یا تختې له مخې پـه تصویري شکل یوه مسئله شاگردانو ته تشریح کړي، او بیا له شاگردانو نه هم په همدې ډول عملي پوښتنې وکړي.

مگر اوس تجربو ښـودلې چـې د همدغـه عمـلي میتـود لـه مخـې شاگردانو ته درس ویل تر ټولو زیات مـؤثر، ارزښـتناک او اړیـن دی. یـو مسلکي او تکړه استاذ په شاگردانو کې د عملي میتود له لارې استعداد او قابلیت پیدا کولای شي.

د دې کار گټې: ۱ - د شاگردانو پر خپل ځان باور زیاتیږي، جرئت یې لوړیږي. چې بیا هیڅکله د ناکامی ویره نه احساسوي. ۲- شاگردان د هرې ورځې لپاره تر ټولو زیات زیار باسي او بشـپړ چمتـووالی نیسي، او همدا چمتوالی یې بیا د تل لپاره عادت جـوړیږي. ۳ - پـه دې کـار سره د شاگرد نیمگړتیاوې استاذ ته څرگندیږي او دا نیمگړتیاوې یې ور په گوتـه کولای شي، حل لارې یې ورته ښودلای شي. ٤- په دې سره پـه شـاگردانو کې هم د درس ورکولو، د ښه تشریح کولو، د بل چا پـه مـخ کـې د خـبرو کولو، د بشپړ مسئولیت منلو او داسې نورو وړتیاوې پیدا کیږي.

لنډه دا چې د عملي میتود گټې ډېـرې زیـاتې دي. چـې دا میتـود د تدریس له نویو اسلوبو نه یو گڼلای شو.

## د تختې یا بورډ له مخې د درس تشریح:

کله چې استاذ شاگردانو ته د کتاب له مخې د یوې مسئلې یا یـوې قاعدې او یا یوې موضوع په اړه درس پیل کړي، نو د ده لپاره ډېـره گرانـه وي چې په آسانه شکل د خپل ذهن محصول تر شاگردانو پورې په آسانی سره ور انتقال کړي، مگر که همدا مسئله د بورډ یا دیوالی تختې پر مـخ ولیکي، او له هغه نه یې ورته تشریح کړي، نو ډېر په آسـانی سره کـولای شي، چې یو نظری شی په بدیهي بدل کړي، معقول شی محسوس غوندې وگرځوي، استاذ له ډېري ذهني سترپا ځان وژغوري، د شاگردانو په ذهـن کې هغه خبره راسخه شي، او شاگردان نور هـم د درس طـرف تـه تشـویق شي.

نن سبا زموږ په مدارسو کې استاذان دغه شي ته چندان پاملرنه نه کوي، حتی ځینی خو یې د خندا وړ گڼي، په داسې حال کـې چـې دا یـو نبوي سنت عمل دی.

نبی کریم صلی الله علیه وسلم یوځل صحابه کرامو ته د قرآنکریم دا آیة کریمه (وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ) داسې تشریح کړ، چې پرځمکه یـې یـو مسـتطیل شکل جوړ کړ، بیا یې د هغه په منځ کې اوږد خط کش کړ، او بیا یې لـه هغه نه په عرض کې ډېري لیکي و ایستلې. او صحابه وو ته یې وویل چې دا مستقیم خط زما لاره ده، دا تعقیب کړئ، او پر دا نـورو لارو مـه ځـئ چې له هدفه به مو خطا کړي.

نو دا یو واضح ثبوت دی چې د مسـئلې د ښـه پوهـاوي لپـاره چـې همدا ډول عملي میتود وکارول شي؛ ډېر مفید واقع کیدلای شي.

چې نن سبا یې بیا نوي شکلونه د پروجیکټر په ښه هم راغـلي دي خو هغه په عامو حالاتو او هرځای کې کارول ښـایی مشـکل وي، او پـه ټولو اسباقو او ټولو مضامینو کې یې نه اړتیا وي او نه یې شونتیا.

## د عملي میتود بل شکل:

یو عرب عالم چې د تدریس په میدان کې په نویـو ابتکـاراتو کـې ښه دلچسپي لري؛ هغه وایی مـا خپلـو شـاگردانو تـه درس وایـه د زکـوة

مسئله مې ورته تشريح کوله، لومړی مې دا ورته ویل چې زکات په کومو اجناسو کې شته، نو د دې دپاره مې پر تخته هغوی ته ولیکل: (زکات) ما ویل تاسو راشئ دا کلمه تقسیم کړو، چې څلور حروف لري او دا هر حرف يې يوه او يا دوو اجناسو ته وضع کړو؛ خپله به د زکات اجناس را مالوم شي.

په دې طريقه: (ز) زر- سپين او سره - (ک) کښت او ميوې (ا) انعام - څاروي- (ت) تجارت.

يعني د زکات له کليمې نه موږ د زکات اجناس ټول په ذهن کې ساتلي شو.

دغه عالم داسي نور ډېر زيات مثالونه ورکړي، چې وايي هر استاذ په خپل ماحول کې د شاگردانو د مستوی مطابق يو ډول ابتکار په کار اچولای شي چې هم د ده لپاره آساني پيدا کوي او هم د شاگردانو په ذهن کې يې درس ښه وقعت پيدا کولای شي.

## د آساتذه وو په اړخ کې ځيني د پام وړ کمزورى:

نن سبا ځيني آساتذه له يو لړ کميو سره مخ وي چې د هغې منفي اغيز بيا مستقيماً پر شاگردانو پريوزي، هغه دا چې:

۱ - ځيني آساتذه د ځان لپاره دا بده گڼي چې هغوی ماشومانو ته د ابتدائي کتابونو تدريس وکړي، دوی هڅه کوي چې لوی کتابونه تدريس کړي. په داسې حال کې چې تعليم او تربيه اصلاً کيږي د ماشوم، لويان ښايي چې له استاذ نه د معلوماتو ترحده يو شی حاصل کړي، خو هغسي- تربيت او تعليم چې د شاگرد په روح او نفس کې حلول وکړي او د استاذ په رنگ ورنگيږي؛ دا يوازې ماشوم کيدلای شي. چې له امله يې د ډېر اجر او باعث سبب هم د ماشوم تربيه او تعليم گرځي.

۲ - ځيني ښوونکي د نه پوهيدلو پرمهال د (لاأعلم) له کليمې سره حساسيت لري. حالانکه دا پخپله يو بهترين علم، او په قرآني اصل عمل کول دی، چې الله تعالی فرشتو ته وفرمايل: «أنبؤني بأ سما ء هٰؤلاء... هغوی وويل: « سبحٰنک لا علم لنا الّا ما علّمتنا»

عبدالله ابن عباس رضی الله تعالی عنه فرمايي: « اذا أخطأ العالم لا أدری أصيبت مقاتلته» عالم چې کله د لاعلمي پرځای د لا ادری نه ويلو اشتباه وکړي، گويا ځان يې هلاک کړ.

۳ - ځيني ځوانان چې د فراغت سند ترلاسه کړي؛ هغوی نور له زدکړې ځان مستغني گڼي چې دا په حقيقت کې لويه اشتباه ده. علامه عيني رحمه الله فرمايي: (وللعلم آفات: أعظمها الاستنکاف...) د علم لپاره ډېر أفتونه شته چې ترټولو غټ يې له زدکړې څخه ځان مستغني گڼل دی. له امام أعظم أبوحنيفه رحمه الله څخه وپوښتل شول، چې څنگه د دې دومره ستر علم څښتن شوي؟: « بم حصّلت العلم العظيم؟ فقال: ما بخلت بالإفادة، ولا استنکفت عن الاستفادة» ده وفرمايل، يو مې چاته په افاده علم رسولو کې بخل نه دی کړی او بل مې هيڅکله ځان له زدکړې نه مستغني نه دی گڼلی.

د سعيد بن جبير رحمه الله قول دی چې وايي: «لايزال الرجل عالماً مادام متعلماً» ترڅو چې سړی په زدکړه بوخت وي، عالم بلل کيږي، کله يې چې تعلُم (زدکړه) پريښوده، بيا ورته عالم نشي ويل کيدی.

٤ - بعضې کسان چې په کوم علم، يا فن کې مهارت ونلري؛ شاگردانو ته د هغه بدې بيانوي او يا لږ ترلږه ترغيب او تشويق خو بيخي نه ورکوي. مثلاً په عربي ژبه چې استاذ تکلم نشي کولای، همدارنگه څه ناڅه د ضرورت په اندازه انگريزي، او يا رياضي، حساب او داسي نور د نن عصر اړين علوم او يا مهارتونه چې کوم استاذ خپله ورځيني برخمن نه وي، نو دغه کمی شاگردانو ته هم ور نقلوي، پرځای د دې چې شاگردان د هغوی عملي زدکړې ته وهڅوي؛ برعکس، حوصله شکني يې کوي، ترپام يې بد ورولي، غيبت يې ورته کوي. چې دا هم يوه لويه تېروتنه ده.

سقراط ته منسوب يو بيت دی چې وايي: (لا تکرهوا أولا دکم علٰی أٰثارکم == فا نهم مخلوقون لزمان غير زما نکم)

تاسو خپل (صُلبي او روحاني) اولادونه په هرڅه کې پرخپل نقش قدم مه اړباسئ، ځکه دوی ستاسو له زماني غير بلې زمانې ته پيدا کړل شوي.

### خلاصه:

څرنگه چې ښوونکی هغې شمعې ته ورته دی، چې خپله سوزي خو نورو ته رڼا ورکوي، نو ښوونکی د زده کوونکي لپاره تر ټولو بهترينه نمونه ده چې کولای شي د شاگرد په ژوندانه کې بدلونونه را ولي، يو ښه لارښود او مدد گار ورته ثابت شي. خو دا هله چې استاذ، شاگرد، تعليم او طريقه يې ټول د پورتني مختصر وضاحت په رڼا کې د نوي طرز او طريقې له ابتکار څخه برخمن و اوسي.

پای...!





## په افغانستان کې د سره صلیب د نړیوالي کمېټې د فعالیتونو

## د بیا پیل په اړه د اسلامي امارت اعلامیه

په افغانستان کې د سره صلیب د نړیوالي کمېټې د فعالیتونو د کمیت او کیفیت په اړه اسلامي امارت یو لړ مهم ملاحظات درلودل، چې له امله یې د اسلامي امارت له لوري د دوی پر فعالیتونو بندیز لګېدلی وو او هغه امنیتي تعهد خیني لغوه شوی وو چې اسلامي امارت یې په عمومي ډول په افغانستان کې متعهدو موسساتو ته ورکوي.

د قطر هیواد په مرکز دوحه ښار کې د اسلامي امارت د مسئولینو او د سره صلیب د نړیوالي کمېټې د مشرانو تر منځ تر مسلسلو اړیکو او بحثونو وروسته د سره صلیب نړیوالي کمېټې او اسلامي امارت تر منځ د پخوانیو تعهداتو سربېره د بشري مرستو په برخه کې نوې وعدې هم وشوې چې پر اساس یې اسلامي امارت دوی ته د بیا فعالیت اجازه ورکړه.

د افغانستان اسلامي امارت د دغې اعلامیې له لارې هغه امنیتي تعهد چې مخکې په افغانستان کې د سره صلیب نړیوالې کمېټې ته ورکړل شوی وو بیرته معتبر ګڼي او ټولو مجاهدینو ته لارښوونه کوي چې د سره صلیب د نړیوالې کمېټې فعالیتونو ته زمینه برابره کړي او د دغې ادارې د کارکوونکو او اړوندو اجناسو حفاظت ته پاملرنه وکړي. والسلام

د افغانستان اسلامي امارت

۱۴۴۱/۱/۱۶هـ ق

۱۳۹۸/۶/۲۴هـ ش ــ ۲۰۱۹

## اظهارات سخنگوی امارت اسلامی در واکنش به ادعاهای سرکرده اداره کابل اشرف غنی

مسئول اداره کابل اشرف غنی به تقلید از باداران امریکایی اش در یک کمپاین انتخاباتی به چک چکی های خود لاف زد که گویا در ظرف یک هفته تقریبا دو هزار مجاهدین را به شهادت رسانده است.

ترامپ، رئیس جمهور امریکا و پمپیو نیز به اساس معلومات نادرست چنین ادعاهای کرده بودند.

ما این ادعاهای پوچ را با جدیت رد می کنیم، اگر شما توان این را می داشتید که دو هزار مجاهدین را شهید کنید، کدام منطقه مشخص و معین کشور را در تصرف خود در می آوردید و راه های عمومی برای چندین روز به روی تان مسدود نمی شد.

در ظرف ده روز گذشته، ولایت های قندوز، بغلان و فراه به سقوط نزدیک شد و ده ها تن عسکر کشته و یا هم زنده دستگیر شدند، این بیانگر قدرت واقعی شما است. سقوط هشت ولسوالی در تخار، قندوز و فراه در ظرف یک هفته توانایی شما را برملا ساخته است.

با موجودیت هزاران نیروهای خارجی و داخلی، رخ دادن انفجارهای بزرگ در کابل بر پایگاه های مهم شما، از بین رفتن گرین ویلج ها و مراکز قول اردوها و تلفات سرسام آور به شما، توانایی شما و حامیان خارجی تان را برای جهان و ملت ما واضح ساخت.

اگر زنان و کودکان را حین خواب در بمباردمان ها و عملیات های شبانه به شهادت می رسانید، مثلیکه چهار برادر را در یک خانه در ننگرهار و هفت اعضای یک خانواده را که همه مردم ملکی بودند در وردک به شهادت رسانیدید، این هرگز کمال نیست. شما بجای افتخار باید بر چنین جنایات احساس خجالتی می کردید.

اگر سرپرستی باداران خارجی تان نمی بود تاب یک هفته مقاومت در برابر ملت را نداشتید. بالا بالا افتادن بر میخ بیگانه ها هیچگاه جای افتخار نیست.

ذبیح الله مجاهد سخنگوی امارت اسلامی

۱۴۴۱/۱/۱۴هـ ق

۱۳۹۸/۶/۲۲هـ ش ــ ۲۰۱۹

# دمثالي اسلامي حکومت جوړولو نمونه...؟

■ بشیرسمسور

داسلامي حکومت جوړولو پرموضوع هردورکې داسلامي امت ثقه اوبا اعتماده علماووعالمانه بحثونه اوفاضلانه څیړنې کړې ،چې په سبب یې امت ته خوراګټورې معلوماتي پانګې اوارزښتمنې علمي زخیرې په میراث پاتې دي.

څو ورځې وړاندې دچا له خولې مې دمثالي اسلامي حکومت.... تعبیریا اصطلاح وا وریده، چې دامریکایې اشغال دپای ته رسیدو وروسته که خدای تعالی کول په هیوادکې مثالي اسلامي حکومت رامنځته شي...! په دې سره مې دخوشالی نه زړه باغ، باغ شو،زکه دمثالي اسلامي حکومت رامنځته کیدو ارزو هرمومن افغان لري اودایمان غوښتنه ده چې هرمسلمان به دخپل وس په اندازه داسلامي حکومت په رامنځته کولوکې خپله توانائي اواستعداد صرف کوي

بیشکه افغان ولس له تیرو څلورو لسیزوراهیسې داسلامي نظام دکامل حاکمیت لپاره چې کومې بیدریغه قرباني ورکړې، اوددې لپاره یې کومې ناخوالې،تودې وسړې وزغملې هغه په تاریخ کې ساری نلري، راځم دیته چې د مثالي اسلامي حکومت جوړیدل دهرافغان ارمان او ارزو ده ، په دې امید چې دامریکایې اشغال نه دهیواد دزادی علمبرداران اوداسلامي نظام دنفاذلپاره دمبارزې رښتیني مخکښان او سرلاري به په دې لړکې مجاهد افغان ملت مایوسه نکړي.ورسره دلومړي اسلامي قرن دیومثالي واکمن دغوره سیرت او کردار څو کارنامې شریکوم

په لومړي اسلامي قرن کې دمثالي اسلامي حکومت مثالي واکمن حضرت عمربن عبد العزیز[رضی الله تعالی عنه] یادوم، څوک چې دراشدینو خلفاوو[رضی الله تعالی عنهم]وروسته هغه رښتینی مثالي اسلامي واکمن وچې مبارک سیرت یې نن هم د اسلامي حکومت جوړولو علمبردارانو د رهنمائي لپاره کافي وشافي دی.

حضرت عمربن عبد العزیز[ رضی الله تعالی عنه] دبنوامیه کورنی غړی اوداسلامي خلفاوو په تاریخ کې دمثالي کردار څښتن خلیفه و، نوموړی دتابعینو دهغه مبارکې دلې څخه و، کومه چې دصحابه وو[ رضی الله تعالی عنهم] نه وروسته ترټولوغوره طبقه وه،نوموړی دخپل وخت ممتازدیني عالم، محدث او صالح واکمن و، پلاریې یویشت کاله دمصروالی و، اوهم پخپله هغه دخلیفه ټاکل کیدو وړاندې دمدینې منورې والي و، پر دې علاوه نوموړی دخلیفه عبد الملک بن مروان ورارہ، زوم اوداموي واکمن خیل ممتازفردهم و، مشهور اموي خلیفه سلیمان بن عبد الملک چې کله دمرګ په بسترپریوت، د ځان وروسته یې عمر بن عبد العزیزخپل ځای ناستی غوره کړاوچاروا کوته یې په ژوند کې له نوموړي سره دبیعت کولو حکم وکړ

کله چې دهجرت په۹۹کال صفرالمظفر میاشت کې سلیمان عبد الملک ومړ، د هغه وروسته حضرت عمر بن عبد العزیز دنوي خلیفه په حیث لوړه وکړه

دحضرت عمربن عبد العزیزسوانح لیکونکو لیکلي: حضرت عمربن عبد العزیز دخپل خلافت لپاره یواځې دشاهي کورنی دغړو بیعت کافي ونه ګانه، هغه چې کله دسلیمان بن عبد الملک دتکفین اوتدفین څخه وزګارشو، له هغه ځایه نیغ د دمشق جامع مسجد ته لاړ اوهلته یې خلکوته وینا وکړه، ویې ویل: خلیفه ټاکل دخلکو کاردی،زه ځان دخلافت لپاره اهل نه ګنم؛ ددې لپاره غواړم چې خلکو ته دهغوی لخوا دخلیفه انتخابولو حق وسپارم؛ څوتاسو ناست خلک دځانو لپاره له ما پرته بل شخص دخلیفه په

توگه غوره اوورسره بیعت وکړئ، خلکو په یو اوازوویـل: دوی بل څوک خلیفه نه مني اونه دبل چاسره بیعت کوي.

حضرت عمربن عبد العزیز دخلیفـه پـه حیـث دټاکـل کیدو وروسته چې ړومبی له کـومې مسـئلې سره مـخ شـوهغه داوه چې دبیت المال زیاته سـلنه ملکیتونـه دشـاهي کـورنۍ دمخورو اشخاصو ترمنځ ویشـل شـوي وو،پـه دې وجـه بیـت المال د درانه تاوان او خسارې سره مخ و، حضرت عمر بن عبد العزیز دبیت المال اړوند ملکیتونو اوشـتمنیو،بیت المـال تـه دسپارلو لپاره جدي پریکړه وکړه اوپه قاطع عـزم یـې دبیـت المال خوندي کولو ته مـلا وتړلـه، ددې لپـاره یـې چـې کومـه تګلاره وټاکله هغه خورا پـه زړه پـورې ده او پـه دوه برخـویې وویشله، دهغې په دواړو برخو یې یوشان اوپه یـو وخـت کـې عمل وکړ:

۱ ـــ ترنـورو دمخـه یـې پخپـل شخصي ـ ژونـد کـې تغیرراوست، که څه هم نوموړی شهزاده و،دتعیش اوسهولتونو دژوند سره روږدی اوعادي و،روایتونـوکې رازي: عمـربن عبـد العزیز نهایتي خوش لباس و، هیـڅ لباس به یې دوځله نـه پـه تن کاوه، حتی په ورځ کې به یـې څـو، څـو جـوړې بـدلولې، هیـڅ جوړه یې دوهم ځل نه اغوسـته، تـردې پـورې کلـه چـې دمدینې منورې دوالي په حیث دمشـق نـه مـدینې تـه راتـه، یواځې خپل ذاتي تـوکي او سـامانونه یـې پـه دیـرش اوښـانو بارمدینې ته راوړل

هم دا وجه وه چې دنومـوړي علـم اوتقـوا تـه پـه کتوبـه دهغه معاصرینواوهمزولو په حدنه زیات نفاسـت اوګرانبیـه لباسونواغوستویې نیوکې کولې، لیکن کله چـې دخلیفـه پـه حیث دخلکو لخواعمومی بیعت بشپړشواوددمشـق مسـجدنه بیرون را وت، دتشریفاتي دود په توګـه ورتـه دشـاهي اسـونو دسته وړاندې شوه، نوموړي هغه ونـه منلـه اودخپلـې سـورلۍ لپاره یې یواځې یوقچرغوره کړ، نوموړی پـه دې معاملـه کـې دومره سخت دریځ غوره کړ چې دبیت المال پـه اړه خپلوانـو سره په سختۍ کولو یې دحضرت عمرفاروق[ رضی الله تعالی عنه] یاد تازه کړ.

۲ - بیـت المـال تـه، دبیـت المـال دملکیتونـو اومـالونو دسپارلو لپاره یې په واکمنواو دشاهي کـورنۍ پـه غـړو فشـار ډیرکړ،او دې لړکې یې پیل له خپل ځـان څخـه وکـړ، مدینـه منوره کې [فدک باغ] چې دده په قبضه کـې و، سـملاسي یـې بیت المال ته وسپاره، هم دارازدخپلې میرمنې [فاطمـه بنـت عبد الملک بن مروان] په غاړه کې یوه ګرانبیه غاړکۍ وه چې پلاریې (خلیفه عبد الملک بن مروان) دواده پر مهـال ورکړیـوه بیت المال ته وسپارله

ددې وروسته یې دشاهي کورنۍ غړي ټـول طلـب کـړل اوهغوی ته یې په بیت المال پورې داړوندو ملکیتونو اوتوکیو دسـپارلو حکـم وکـړ، دې سره دشـاهي کـورنۍ پـه غړوکـې دناراضایت یو قوي زوړاوڅپه راپورته شوه، په خاصـه توګـه هشام بن عبد الملک بن مروان خو بـرملا مخالفـت وکـړ، هغـه عمربن عبد العزیزته وویل: ته دپخوانیو واکمنودپریکړو لغـوه کولو حق نلري ، دهغوی لخوا چې چاته کوم څه ورکـړل شـوي هغه اوس دبیت المال ملکیتونه نـدي، اودا پـه مـاضي پـورې تړلي معاملات دي، ته! پکې کار مه لـره، دپخوانیـو پاچایـانو په فیصلو کارمه لره، ځواب کې یې عمر بن عبـد العزیـز رح تري وپوښتل: که تاسره دوه داسې کاغذونه یافرمانونه شـتون ولري چې یو ستا دپلار( عبد الملک بن مروان) وي اوبل دامـوي خلافت دمؤسس معاویه رضي الله تعـالی وي، تـه کـوم یوتـه ترجیح ورکوې؟ هشام وویل: دمعاویه رضـی اللـه تعـالی عنـه کاغذ یا فرمان ته ترجیح ورکوم زکه هغـه ړومبنـی دی، عمـر بن عبد العزیز رح وفرمایل: ماسره دهغه نه هم وړومبنی فرمان شته دی...

هغـه فرمـان داللـه تعـالی کتـاب دی، لـه دې وجـې زه دپخوانیو واکمنو په فرمانونودالله تعالی فرمـان تـه تـرجیح ورکوم

هشام ته یې بله خبره دا وکړه چې که یو شـتمن شـخص مړشي اودهغه په اولادونو کې دوه متوراوځواکمن راپورته شي اودخپل پلار جایدادونه اوشتمنیتوله قبضـه کړي،نوروارثـان تري محروم کړي، وروسته یو وخت تاته واک پـه لاس درشي،

ته به دهغوی ترمنځ څه ډول انصاف وکړي؟ هشام وویل: زه به دقبضه کوونکوڅخه جایدادونه واخلم، اوپه ټولو به یې مساوي تقسیم کړم، حضرت عمربن عبد العزیز رح ورته وفرمایل: زه هم داسې کوم، غواړم چې دخلکو سره انصاف وکړم او هغوی ته په مساوي توګه خپل حقونه ورکړم نو په دې توګه یې دشاهي کورنۍ سرغړونکي افراد مات کړل او دهغوی نه یې دبیت المال مالونه په دوه اوونیو کې دننه وصول کړل

۳ – دریم ګام یې داپورته کړ چې په عامو خلکویې لګیدلې مالیات او ټیکسونه کم کړل، ورسره دمهربانۍ او نرمۍ څخه ډک سلوک یې پیل کړ، دې لړ کې یې دپخوانیو واکمنو له لوري پرعاموخلکولګول شوې درنې مالیې یې نه تنها کمې کړې، بلکې دهغوی له لوري زیات شمیرلګول شوي ناروا ټیکسونه یې ختم کړل، همدا رازیې دعامو خلکو لپاره دمالیاتو اوټیکسونو په اداء کولو کې اسانتیاوې پیلې کړې بالخصوص لړکیو [نامسلمانو] باندې دپخوانیو واکمنو دلوري دلګول شوو ټیکسونو اوپرهغوی دکیدونکو ظلمونو دمخنیوي په اړه یې قوي ګامونه پورته کړل، دهغوی دژوند لپاره یې اسانتیاوې پیدا کړې

ددې په نتیجه کې خلکوکې خوشالې راغله، هغوی دومره راضي شول چې هرسړي به پخپله خوښه پخپله ذمه شته واجبات اداء کول، بیت المال ته خلکو پخپله رضا مالونه راوړل، خالی بیت المال بیرته ډک اومستحکم شو، یوځل یې بیت المال ته دخلکو له لوري پخپله رضا اورغبت سره دمالونو سپارلو په اړه وفر مایل : حجاج بن یوسف عراق کې په خلکو چې کوم ظلمونه کول هغه پټ نه وو،هغه درانه ټیکسونه لګولي وو، خلک یې دظلمونو څخه زیات تنګ وو، خوددې باوجود به هغه دعراق نه په کال کې ایله ۲۸ملیونه درهم ترلاسه کول، خو کله چې ما هلته دهغه وخت ظلمونه ختم کړل، او د مالیاتو اوټیکسونوپه اداء کولوکې مې اسانتیاوې راوستې نواوس په کال کې د عراق نه بیت المال ته د یوسل شل ملیونو څخه زیاتې پیسې راځي، دا ځکه چې ما په خلکو ظلمونه بند کړل اوبل دمالیاتو وصولولو نظام مې اسانه کړ، خلک هلته پخپله ذمه شته واجبات پخپله بیت المال ته راوړي



دحضرت عمر بن عبد العزیز دخلافت دوره یوه نیکمرغه او بختوره دوره وه، نوموړي بیت المال خوندي کړ،دعامو مسلمانانو پې رودونکو ماشومانو لپاره یې دبیت المال څخه پیسې مقررکړې، په خلکو یې ظلمونه ختم کړل وړاندینو واکمنو به دنویو مسلمانانوڅخه هم جزیه اخیسته، نوموړي بنده کړه، او ظلم یې وګرځوله، دې سره مصرکې لوی شمیر خلک مسلمانان شول ، له امله یې په عوایدو کې کمی راغی، دمصر والي ورته یو لیک واستاوه اوشکایت یې وکړ چې خلکونه د پورونو په کولو معاشونه پوره کوم، عواید کم شول، بیرته په ځواب کې یې هغه ته ولیکل جزیه به په هیڅ صورت نه اخلې، الله جلا جله رسول الله صلی الله علیه وسلم دنیا ته [هادي] رالیږلی نه محصل،هغه وچې ددې ګامونوپه پورته کولو سره په لنډ وخت کې بیت المال ته پریمانه مالونه راغلل، داسلامي خلافت په حدودو کې دننه خلک دومره شتمن شول چې زکاة ورکونکو ته زکاة اخیستونکي په لاس نه ورتلل، زکاة ورکوونکو به پیسې له ځانو سره واخیستې ، په بازارونو کې به یې ناري وهلې که هرسړی دزکاة اخستو مستحق وي، هغه دې را شي دازکاة دې واخلي! خوبیا به هم دزکاة اخستومستحقین نه پیدا کیدل

موږ ایمان لرو که نن هم داسلامي نظام دنفاذ سرلاري اورهبران دحضرت عمربن عبد العزیز سیرت خپل کړي اوهغه دخپلې لارې مشال وګرځوي پوخ باورمودی چې یوځل به بیا نړیوال اوپه خاصه توګه افغانان داسلامي نظام دنیکمرغیو خواږه وڅکي او بشریت به داسلامي نظام دعدل اوانصاف له لورینو او مهربانیو څخه کما حقه برخمن شي.



# د کابل د وروسـتي برید

## جهـادي پیـغام!

احمد مختار

امریکایي ولسمشر ډونلډ ټرمپ ته له اسلامي امارت سره د شوې هـوکړې د مسـودې لـه لیږلـو سره هـم مهالـه طالبـانو پـه پلازمینې کابل او یوشمیر نـورو ولایتونـو کـې منسجم عملیـاتي پلان پلی کړ.

دقیقا کابل ته له قطر څخه د زلمي خلیلزاد له رسیدو سره سم طالبـانو د کابـل ښـار پـه ختـیځ ګـرین ویلـیج (زرغـون کـلي) باندې داسې ځپونکی استشهادي برید وکړ چې په بهرنیو اتباعو سربیره په سلګونو داخلي پوځیان ورکې مړه او ژوبل شول.

د کابل تر برید وړاندې په کندوز او لـه هغـه سره همزمـان بغلان باندې یې هم بریالي عملیات تر سره کړل.

د کابل، بغلان او کندوز ترڅنګ یـې تخار، بدخشـان، فـراه غزني او یو شمیر نورو ولایتونو ته هم عملیاتي لړۍ وغزوله.

آن تر دې چې د بغلان ولایت مرکز پلخمري پوره یوه اونـۍ د مجاهدینو تر داسې محاصره لانـدې و چـې هـره ورځ بـه یـې د پلخمري مربوط سیمې یو په بله پسې فتحه کولې.

**پیغام رسوونکي بریدونه:**

که څه هم چې د روان کال له پیله اسلامي امارت د بهرنیـو یرغلګرو او د هغوی د داخلي ملاتړو خلاف د الفتح کفر ځپونکي عملیات پیل کړي چې د هیواد په ګوټ، ګوټ کې یې اشـغالګرو او د هغـوی کورنیـو مزدورانـو تـه درانـه تلفـات اړولي، خـو لـه امریکایانو سره د اشغال د خاتمې د هوکړې د مسودې لـه نهـایي کیـدو او د امریکـایي اسـتازي زلمـي خلیلـزاد لخـوا امریکـایي ولسمشر ټرمـپ تـه د هغـې لـه لیږلـو سره هـم مهالـه د عملیـاتو توندیدل خپل زماني ځانګړی پیغام لري.

دا پیغام په مجاهد افغانستان کې د ټولو اشـغالګرو خـلاف د جهاد د تداوم پیغام دی چې د هیواد تر مکملې آزادي او دلته د اسلامي حاکمیت تر پلي کیدو پوري به جاري وي.

دا سمه خبره ده چې د اسلامي امارت سیاسي چـارواکو لـه تیر یوه کال راهیسي په (۹) پړاوونو کې له امریکایانو سره سیاسي مذاکرات ترسره کړي چې تـر اوسـه پـوري پـه ښـو مثبتـو لاسـته راوړنـو منـتج شـوي، خـو د اسـلامي امـارت د وروسـتیو پـوځي بریدونه اصلي پیغام دا دی چې له یرغلګر دښمن سره وروسـتۍ فیصله به د جهاد تداوم او جهادي سرښندنې کوي.

**دښمن ډاروونکي بریدونه:**

**د مجاهـدینو وروسـتي بریدونـه کـه لـه یـوې خـوا سپیني مانۍ ته خپـل پیغـام لیـږدوي لـه بلـې خـوا یـې داخلي دښمن لـه سـختې ویـرې او وارخطـایي سره مخ کړی دی چې پـه نتیجـه کـې پـر خپلـو نیـږدي افـرادو سخت بې باوره شوی دی.**

**د دښمن پـه لیکـو کـې وارخطـایي، بې بـاوري او د هغوی ترمنځ داخلي اختلافات ټول د دې لامل شوي چې د مجاهدینو په مقابل کې د مقاومت روحیه کمزوري او د مقابلې توان له لاسه ورکړي.**

د دښمن په خـلاف د مجاهـدینو عملیـاتي ځپه پـه داسې حال کې توندیږي چې امریکایي اشـغالګرو او د هغـوي بې مروتـه مزدورانو له تیرو دوو کلونو راهیسي د مجاهدینو د ځپلو په پلمه د ولسي خلګو خلاف وحشیانه بمبـاري او ړانـده شـپني عملیـات په ډیر شدت عملي کړي، خو مجاهدینو وکـړای شـول د دښـمن له همدې ټـول وحشـت سره سره د هیـواد پـه ټولـو سـتراتیژیکي سیمو کې د دښمن خلاف داسې تهاجمي بریدونـه تـر سره کـړي چې هغوی له خپلو ټولو هوایي او ځمکنیو مدافعوي امکاناتو سره له مقابلې څخه عاجزدي.

والحمدلله... پای..



# د مذاکراتي پروسې د ځنډ په رابطه ځو ناویلي حقایق...!!

لیکنه: نعمت میوند

د رواني سپتمبر میاشتې پر۸مه نېټه، د امریکا ولسمشر ډونالډټرمپ په ناڅاپي توګه د یو ټویټ له لارې د کمپ ډیوډ له هغې غونډې پرده پورته کړه چې په اړه یې وارله مخه مالومات نه و رسنیز شوي، ترڅنګ یې له طالبانو سره د مذاکراتو روانه بریالۍ پروسه هم وځنډوله.

نوموړي دا کار په داسې غیرمترقبه شکل وکړ چې نه یې خپل مذاکراتي ټیم په اعتماد کې واخیست او نه یې هم د هغوی حیثیت ته وکتل، حال داچې له لوړپوړو سیاسي او نظامي کسانو څخه جوړ دا ټیم یې نژدې یو کال د مذاکراتو د بریا په برخه کې خورا ستر محنت کړی و، مختلفو هیوادو ته یې مکرر سفرونه کړي و، له ډېرو جهتو سره یې تفاهم کړی و، له طالبانو سره یې ډېر لاینحله موضوعات حل کړي، ترمپ نه د باندنیو چارو وزارت او نه یې هم د امریکا د نورو رسمي جهتونو نظر پوښتلی و. همدا لامل دی چې د مذاکراتو د ځنډ خبره تراوسه پورې د امریکا د هیڅ یوې رسمي ادارې لخوا نه ده ښوریدلې، بلکې یوازې د ټرمپ همدا ټویټ دی وبس، د بهرنیو چارو وزیر یې د ترمیم کوښښ وکړ خو اوبه تر ورخ تیرې وې او خپله ټرمپ هم لکه چا چې تبر ایستلی وي، وروستي حرکات او څرګندوني یې نارمل نه ښکاري او په تېر ایستونکو کې یې د ملي امنیت د سلاکار جان بولټن نوم هم راته چې پرون یې په هغه هم زړه یخ کړ او له کاره یې ګوښه کړ، کیدای شي ټرمپ ورته ویلي وي چې په ما خو دې په یوه څپېړه سل خپل او پردي مخونه خوړ کړل نو ته به هم نور د سپیني ماڼۍ په مجلل انګړ کې قدم رانه کښېږدې.

په هرحال د لیکنې په راتلونکو پراګرافونو کې به د ځینو ترلاسه شویو معلوماتو پر اساس د دې پیښې څو عمده لاملونه درسره شریک کړم:

لکه مخکې چې ورته اشاره وشوه، که څه هم د ټرمپ دا کار ناڅاپي بلل کیږي، خو د مذاکراتو له جریانه باخبره سرچینې وایي چې دا کار ناڅاپي نه، بلکې همدا تشویش وار لمخه لا موجود و، د امریکا د مذاکراتي ټیم څخه دا څرګنده شوې وه، چې هغوی د ټرمپ له مزاج او د مذاکراتو په وړاندې له پرتو ننګونو نه سخت په تشویش کې وو، چې همدا تشویش یې بالآخره په حقیقت بدل شو.

دا چې ولې د دې وېره موجوده وه، په اړه یې څو لاندې دلایل کیدای شي:

-۱ ډونالډ ټرمپ پخپل ټویټ کې د مذاکراتو د کینسل کیدو علت، په کابل کې د یوه امریکایي وژنه وبلله؛ چې ظاهراً دا دلیل معقول نه ښکاري، ځکه چې تر دې وړاندې هم امریکایان ډېر وژل شوي او په آینده کې به هم ښایي ووژل شي، نو د یوه امریکایي مرګ د دومره لوی جریان د دریدو لامل نشي کیدای، البته د اوبو خړولو کمزورې بهانه کېدای شي.

-۲ دا هم لیري نه ده چې امریکایي لوري فکر کړی وي چې د توافقنامې په لاسلیک سره به دکابل اداره و شریږي چې بیا به یې هرڅه له لاسه وتلي وي، ځکه مذاکراتو ته نږدې سرچینې وایي چې د توافقنامې په لاسلیک سره به د بهرنیو ځواکونو رول بدلیده او فعالیت یې محدودیده، او دا هم حقیقت دی چې د کابل حکومت د همدې بهرنیو ځواکونو د نظامي رول له برکته د ژوند سا اخلي.

-۳ د باخبره سرچینو د مالوماتو له مخې داسې ښکاري چې په توافقنامه کې ځای شوي مواد د ځینو کړیو خوښ نه وو، دغه ټکي د امریکا پر حکومت په کور دننه فشار زیات کړی و، د مذاکراتو مخالفینو او جنګ غوښتونکو جهتونو ورته ویل چې توافقنامه زموږ په ګټه نه ده، د کابل ادارې هم خپل معلومات او نظریات امریکایي چارواکو ته داسې وړاندې کول چې د مذاکراتو جریان تاواني او خطرناک وښیي، یا ښایي دغې ادارې امریکایانو ته دا کاذب امید ورکړی وي چې په زور جنګ ګټلی شو خو چې تاسې لیږ زور لا نور وکړی، نو ممکنه ده چې ټرمپ او ملګرو دې دا قدم په دې خاطر اوچت کړی وي چې همغه جنګ غوښتونکو او د مذاکراتو مخالفو ته څه وخت ورکړي او بیا ور ته ووایي چې دا ده له مذاکراتو پرته هم هیڅ نه ترلاسه کیږي، هغه مذاکرات لا ښه و.

-٤ مګر ترټولو قوي احتمال یې دا ګڼل کیږي چې د امریکا ولسمشر ټرمپ طالبانو ته امریکا ته د ورتګ بلنه ورکړې وه، خو طالبانو لکه څنګه چې پخپله اعلامیه کې ویلي، د هغه بلنه یې د توافقنامې ترلاسلیک پورې په تعویق کې اچولې وه، دا ځکه چې افغاني دود داسې دی چې دښمن د دښمن کورته تر جوړې کولو مخکې نه ورځي، د طالبانو دغه دریځ ښایي، ټرمپ ډیر په غوصه کړی وي، ځکه امریکایي چارواکي تراوسه په نړۍ کې له داسې چا سره نه و مخ شوي، چې د امریکا دعوت دې رد یا وځنډوي، اصلاً امریکا له داسې غبرګون سره بیخي نا اشنا وه، نو ځکه یې په ځواب کې د بل عکس العمل پرځای د څه وخت لپاره مذاکرات وځنډول، ترڅو د دوی په فکر، طالبان په دې سره تنبیه او تر فشار لاندې راولي.

وروسته به څه کیږي؟

له شک پرته چې جګړه یو ستر ناورین دی، ترهرڅا زیات متضرر او قرباني یې هم افغان ولس دی، له همدې ځایه وه چې ترمذاکراتو پورې د افغان ولس ډېرې هیلې تړلې وې، ترڅو یې کور له اشغال او جنګ جګړو خلاص او یوه سوله ایزه فضا رامنځ ته شي.

متاسفانه چې د ټرمپ دغه ناڅاپي او ناسنجیده کار زموږ هیوادوال ترډېره حده ناهیلي کړل، تر دې بدتره بیا دا چې د کابل ادارې چارواکو یې استقبال وکړ، سره له دې چې د طالبانو د اعلامیې په وینا، (د توافقنامې تر لاسلیک او اعلان وروسته د رواني سپتمبر میاشتې ۲۳م نیټه د بین الافغاني مذاکراتو د ناستې لومړۍ ورځ ټاکلې شوې وه.) د دې باوجود، بیا هم د کابل ادارې له لوري د مذاکراتو لغوه کیدو ته د هغوی خوښي څرګندول؛ ثابتوي چې دغه جنګ غوښتونکي چارواکي هیڅکله په افغانستان کې د بهرني اشغال او جګړې پرختمولو خوښ نه دي.

په داسې حال کې چې په دنیا کې ښایي هیڅ باشعوره سړی بې موجبه تر امن جګړه غوره ونه بولي، هغه کار چې د کابل حکومت چارواکو وکړ دا نو د ولس په زخمونو د مالګې دوړولو مترادف عمل و.

په هر صورت د خبرو د بیا پیلیدو او د افغانستان غمیزه د خبرو له لارې پای ته رسولو باندې اوس نژدې ټوله نړۍ متفقه ده، حتی امریکا کې هم د ا نظر اکثریت دی او هم حاکم دی او دا هم یقیني ده چې امریکا خو هسې- هم وزي خو د دې توافقنامې د لاسلیک په صورت کې بې هم د وتلو خوندي لاره پیدا کړې وای او هم به یې څه ناڅه حیثیت پکې خوندي شوی وای چې دا دواړه د جنګ له لارې نشي پیدا کولای. نو د تل لپاره د مذاکراتو دروازه بندول د هیڅ چا نه پخیر تمامیږي، او نه داسې څه شواهد شته چې دا ځنډ دې تلپاتې و اوسي.

ځرنګه چې روانه جګړه افغانستان ته درونډ زيان اړوي، همدارنګه يې امريکا هم له تاوانه خوندي نه ده، په دې تېرو اتلسو کالو کې چې امريکا ځومره ځاني، مالي او د حيثيت د را لوېدو زيان، پرته له څه ملموسې لاس ته راوړنې ګاللی؛ عيان لره د بيان اړتيا نشته، او آينده کې هم د امريکا لپاره د همدې تاوان د زياتيدو امکان ډېر او د کميدو دا يې له نشت سره برابر دی او دا هم واضح ده چې په جنګ يې نشي ګټلای.

ځکه چې د طالبانو په اعلاميه کې واضح راغلي چې دوی به تر اخيري بريا پوري خپل روان جهاد جاري ساتي او په وينا يې پرخپلې بريا يې سل سلنه باور هم دی.

د طالبانو په وينا، د مذاکراتو متوقف کول به ترهرڅا ډېر تاوان په خپله امريکا ته ورسوي، (اعتبار به يې زيانمن، د سولې ضد دريځ به يې نور هم نړۍ ته ښکاره، د سر او مال زيان به يې زيات او په سياسي تعامل کې به يې کردار متزلزل معرفي کړي.)

دويمه خبره دا چې يوې کره سرچينې راته وويل چې د امريکايي پلاوي مشران اوس هم د طالبانو سره په مستقيم تماس کې دي، تر دې چې د سرچينې په وينا د ټرمپ تر اعلان ځو شيبې وروسته د امريکايي پلاوي د مسئولينو له خوا طالبانو ته وويل شول چې تاسو حوصله وکړئ، له جدي عکس العمله ځان وساتئ چې خبره بيرته موږ راجوړوو، هغوی حتی دا هم ويلي و چې موږ امريکا ته په لاره يو او تر اوسه مو لا د ورستيو ناستو د جريان راپور هم له مشرتابه سره نه دی شريک کړی.

له دې نه ښکاري چې د مذاکراتو لړۍ بيرته پيليدونکې ده، ښايي بيرته همغه توافقنامه په همغه شکل او يا له څه زياتونو او کمونو سره بيرته د لاسليک ميز ته برابره شي، ترڅو اشغال پای ته ورسيږي، ورپسې بين الأفغاني تفاهم پيل شي، ځکه چې د افغانستان روان کړکيچ له دې پرته بل معقول حل نه لري.

زياتره شنونکي په دې باور دي چې د مذاکراتو د ځنډيدو په ترس کې ممکن د امريکا د ملی امنيت دسلاکار جان بولټن په شان، هم په کابل او هم په امريکا کې ډېری جنګ غواړي ستې د قدرت له ګدۍ را پريوزي.

پای.......!

نعمت ميوند

## دارالعلوم ديوبند د نړيوال قيادت مرتبې ته څنګه ورسيد ؟

ژباړن :عزت الله درويش کوټوال

په دېد اړوند شيخ الاسلام حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب دامت برکاتهم العاليه وفرمايل:

د ديوبند په څير ډير نور مدارس هم شته دی، چې په هغو کې د طلباو تعداد هم ددارالعلوم ديوبند نه ډير دی، مدرسې هم ډيرې لوی دي، اساتذه يې هم دقابليت لروونکي دي ، ليکن کوم شي چې ديوبند ته د عالمي قيادت مرتبه عطاء کړې ده.

الله تعالٰی دې زما د والد ماجد حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحبؒ درجات بلند کړي ، زه دهغه د خولې الفاظ درته نقل کوم ، هغه به فرمايل:

"د ديوبند نه ديوبند جوړولو والا شی صرف يو دی ، هغه ددين صحيح تعبير کول، د دين صحيح تصور ، او په دين کې د اعتدال والا عمل دی، کوم چې الله تبارک وتعالٰی په دغه ځمکه کې ګونډه وهونکو طلباو ته عطاء کړ.

زما والد ماجد به فرمايل: ما په عرب ميشت هيوادو کې لوی لوی محقق علماء هم ليدلي دي، د تحقيق او تدقيق ماهرين مې هم کتلي ، د فصاحت او بلاغت شهسواران مې هم وليدل ، ليکن کوم د اعتدال نظرې لرروونکي او په دين دعمل نمونې چې ما په خپلو ديوبندي اکابرينو کې ليدلي، په درسته نړۍ کې نور داسې اشخاص اوس وخت کې په نظر نه رازي ، او فرمايل يې:

ما چې خپل اکابر په کومه طريقه ليدلي ، د قرآن او سنت چې کوم درست تعبير دی، دوي په قول نه بلکه دخپلې زنده ګی په طريقو کې په عملي شکل د نړيوالو مخ ته پيش کړی دی او ددې مثال په ټوله دنيا کې مونږ ته په نظر نه رازي.

الله تبارک وتعالٰی د" ما أنا عليه وأصحابی " مجسم تفسير زموږ دغه اکابر جوړ کړي دي ، او کله ناکله به يې دا هم فرمايل:

أُولٰئِکَ آبَائِیْ فَجِئْنِی بِمِثْلِهِمْ　　　اِذَا جَمَعتنَا يَا جَرِيْرُ الْمُجَامِعُ

( خطبات دوره هند ، شيخ الاسلام حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب صـــ۹۰(

الجامعة الإسلامية دارالعلوم ديوبند الهند!

# جلال الدين حقاني

## د منبر او سنگر امام او د پېړۍ مجدد رهبر

**عبدالرحيم (ثاقب)**
ليکوال اوسياسی شنونکی

افغانستان د تاريخي شخصيتونو ټاټوبی دی. دلته د تاريخ په هر مقطع کې يوشخصيت سر را پورته کړی ، اتلوالې کارنامې يې تر سره کړې او د هغو په وسيله يې په تاريخ کې خپل مقام تر لاسه کړی.

د افغانستان تاريخ د علمي، ادبي، او جهادي اتلانو په کارنامو ډک دی.

د افغاني شخصيتونو او اتلانو لړۍ له اوسني افغانستان ، او پروني خراسانه زرگونه کلونه وړاندې له لرغوني آريانا څخه پيل شوې او تر اوسه دوام لري.

که د اسلام د مقدس له ظهوره را په دې خوا د دين په خپراوي کې د افغان علمي او جهادي اتلانو کارنامو ته وکتل شي له شکه پرته چې ډير دروند وزن لري.

افغانستان ته د اسلام د مبارک دين له را رسيدو سره سم دلته د اسلامي اتلانو او علمي شخصيتونو لړۍ له جليل القدر صحابي حضرت سفينه مولی رسوالله صلی الله عليه وسلم څخه شروع ، تر امام الشام في الحديث مکحول شامي ، ابوداود السجستاني ، ابن حبان البُستي، سلطان محمود غزنوي ، شهاب الدين غوري ، احمد شاه ابدالی پورې رسيدلې ده.

الحاج مولوي جلال الدين) حقاني (رحمه الله د افغاني اتلانو د سلسلې وروستی کړۍ ده چې په خپلو تاريخي ، علمي او جهادي کارنامو سره يې د افغاني تاريخ په زړه کې خاص ځای نيولی دی.

نن ورځ د دې تاريخي شخصيت د وفات لومړی تلين دی مونږ غواړو په دې مناسبت د ستر) حقاني (د جهادي، علمي ، فکري او مبارزاتي مشخصاتو په اړه له درنو لوستونکو سره بحث و لرو.

### د جهادي نهضت نوښتکر سرخېل:

مولوي جلال الدين حقاني رحمه الله له هغو کم ساريو شخصيتونو څخه دی چې د اسلامي اُمت د تخدير شوي نسل د جهادي روحيې په راويښولو، پاللو او بيا هغوی د خدای په لاره کې جهاد ته چمتو کولو کې يې ځانگړی مهارت درلود.

دغه ډول شخصيتونه د خپلو جهادي مواهبو او ابتکاراتو له امله په اُمت کې ځانگړی مقام او ارزښت لري، ځکه هغوی د اسلامي ټولنې هغه اتلان دي چې د خپلو جهادي کارنامو او فعاليتونو له وجې ټولو مسلمانانو ته د وياړ لامل گرځېدلي دي.

دغه ډول شخصيتونو له خير القرونه نيولې تر اوسه پورې د تاريخ په بېلابېلو مراحلو کې وجود لرلی او په خپلو تاريخي کارنامو سره يې په خاصو تاريخي پړاوونو کې، اسلام او مسلمانانو ته نه هېرېدونکي خدمتونه کړي دي.

مثلا مجتهدينو کرامو د علم، فقاهت، استنباط او استخراج په مسائلو کې فعال اجتهادي رول لرلی دی .

مفسرينو د قران کريم د تفسير په مجال کې جُهد کړی او مسلمانانو ته يې د کتاب الله په تفهيم او تفسير کې د قدر وړ خدمتونه کړي، محدثينو کرامو د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د احاديثو په ترتيب، تخريج او د هغوی لپاره د علمي قواعدو په ايجادولو کې زيار کړی چې له امله يې موږ د اصلي او موضوعي حديث او همدا راز صحيح او ضعيف حديث تر منځ توپير کولی شو .

همدا راز نحوي او صرفي علماوو، اهل بلاغت او ادب، د طب، اقتصاد او سياست فاضلانو په خپل عصر۔ او ځای کې فعاليت کړی او انسانيت ته يې ګټې رسولي.

**په يوه تاريخي مقطع کې يو تاريخ ساز شخصيت:**

مرحوم جلال الدين حقاني د تاريخ په يوه خاص مقطع کې د اسلامي اُمت د اتلانو او مشاهيرو له جملې څخه د جهاد، مبارزې او دعوت په مجال کې تبارز کړی او په هغه کې يې د خپل اخلاص او فداکارۍ په مټ د ارتقاء مدارج طی کړي .هغه سره له دې چې يو جيد عالم، ماهر سياست پوه او ښه مبلغ و، خو د تخصص ساحه يې جهاد او له يرغلګرو سره د مقابلې محاذ و.

دا خپله د حقاني صاحب د خولې خبره ده چې )) کوم لذت ما په جهادي جبهو او له يرغلګرو سره د مقاومت په سنګرونو کې احساس کړی، د بيت الله شريف په طواف کې مې نه دی احساس کړی.



نوموړی يوازينی جهادي مشر دی چې تر بل هر چا يې د خپلې کورنۍ ډير غړي زامن، ورونه، وربرونه ، خوريونه او نور نږدې خپلوان د خدای په لاره کې نذارانه کړي .داسې مشر چې نه يې له بيت المالـه د عيش وعشرت په جوړولو کې استفاده کړې او نه يې هم جهادي امتيازات تر خپلو شخصي مصالحو قربان کړي دي.

**د شخصيت روزلو فکري مکتب:**

که د حقاني صاحب شخصيت لږ په غور و ارزول شي، دا ترې فهميږي چې» حقاني «يوازې د شخص نوم نه، بلکې د داسې يوې جهادي مدرسې او فکري مکتب نوم دی چې د جهاد، مبارزې او دعوت پلويانو ور څخه پخوا هم د يرغلګرو خلاف د جهاد او مبارزې الهام اخيستی او اوس يې هم ترې اخلي .

)حقاني (د جهاد او سربښندنې د قافلې هغه زيرک ساربان دی چې هم يې د دې ستونزمنې لارې ستړي لارويان له انحرافه ژغورلي او هم يې خپل منزل مقصود ته رسولي.

)حقاني (د جهادي حقانيت ريښتينی مظهر، د مقاومت اسطوره، د صبر، استقامت او ثبات بې ساري نمونه ده.

مولوي جلال الدين حقاني د خپلو جهادي تاريخي کارنامو له مخې د اسلامي اُمت تر وروستيو جهادي اکابرو سلطان صلاح الدين ايوبي او سلطان نورالدين زنکي را ورسته هغه جهادي قائد دی چې د جهادي فعاليتونو اغيز يې د افغانستان له جغرافيې بهر نورې اسلامي نړۍ ته هم رسيدلی دی.

**د معاصر پير جهادي مجدد:**

په معاصر جهادي پير کې له شکه پرته چې) حقاني ( صاحب جهادي مجدد ګڼل کيږي، ځکه که د اسلامي اُمت پخوانيو جهادي اکابرو د جهادي فتوحاتو په وسيله سيمې او هيوادونه فتح کړي، خو حقاني صاحب د معاصر دور د شروطو او امکاناتو مطابق جهادي تکتيکونه او له يرغلګرو کافرانو سره د مقاومت داسې حکيمانه اسلوب ايجاد کړی چې هر چا عملي کړی، هغوی خپل هدف ته رسيدلي او موفقيت يې په برخه شوی دی.

**د درې ګونو جهادي مرحلو د بریاليتوب امتياز:**

حقاني صاحب يوازينی جهادي شخصيت دی چې په خپل جهادي ژوند کې يې د الحادي افکارو پر خلاف د مبارزې مرحله، د شوروي اشغالګرو پر خلاف د وسله وال جهاد مرحله او د هغه په تعقيب د صليبي متجاوزينو پر خلاف د جهادي مقاومت مرحله درې واړه په بریاليتوب طی کړې دي .زه غواړم دلته په ډير مختصر۔ ډول سره د حقاني صاحب د جهادي ژوند ځينې اهم مشخصات له درنو لوستونکو سره شريک کړم:

## تقوی او پرهیزکاري:

تقوی د حقاني صاحب د ژوند بې تکلفه مشخصه وه، ریاکارانه تصنعي تقوی نه، بلکې هغه عملي تقوی چې د ده د ژوند ټول اړخونه، جهاد، سیاست، معاملات او هر څه یې احتواء کړي وو .ځینې خلك تقوی یوازې په عباداتو کې محدود وي او متقي هم هغه بولي چې په لمانځه او روژه کې کې د زوایدو خاص اهتمام کوي او د ژوند په نورو مجالاتو کې یې د تقوی آثار نه لیدل کیږي، خو د حقاني صاحب د تقوی بل شان و او هغه دا چې نوموړي پر خپل ځان د تقوی مفهوم په کُلي ډول عملي کړی دی.

همدا وجه ده چې په ټولو جهادي چارو کې یې د الله معاونت مل و ، ځکه الله تعالی له خپلو نیکو بنده ګانو سره په تاکید دا



وعده کوي چې :إِنَّ اللَّـهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ) ۱۲۸(النحل

## ثبات او استقامت:

پر خپلو مواقفو ثابت او مستقیم پاتې کېدل د حقاني صاحب د ژوند بله اهمه مشخصه ده .حقاني صاحب چې له کومې ورځې د ملحدینو او بیا یرغلګرو خلاف جهاد پیل کړی تر پایه پورې پر هغه موقف ثابت پاتې شو، نه یې د دښمن زور او وحشت په موقف کې تغیر راوستی، او نه هم د هغوی تطمیعوونکو مادیاتو متزلزل کړ .

پر خپل شرعي موقف ثابت پاتې کېدل د الله تعالی د مقبولو بندګانو خصوصیت او الله تعالی یې په قرآن کریم کې داسې تذکُر کړی دی: يُثَبِّتُ اللّهُ الَّذِينَ آمَنُواْ بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ وَيُضِلُّ اللّهُ الظَّالِمِينَ وَيَفْعَلُ اللّهُ مَا يَشَاء ۲۷ سورة ابراهیم.

## سربښندنه او فداکاري:

سربښندنه او فداکاري له هر مجاهد سره لازمي وي خو حقاني صاحب ورکې ځانګړی تخصص درلود .تخصص په دې معنا چې هم یې خپل ځان سربښندنې ته وړاندې کړی، هم اولادونه، هم وروڼه هم وربېرونه ، هم خوریونه او هم ټوله کورنۍ .

د حاجي ابراهیم) حقاني (له قوله چې د حقاني کورنۍ د ټولو شهیدانو شمېر تقریبا)۷۰ (تنو ته رسیږي، په دې کې د حقاني صاحب له ورور او څلورو زامنو نیولې د کورنۍ تر نورو نږدې غړیو او خپلوانو پورې... همداسې یې د کورنۍ د اسیرانو او زخمیانو تعداد.

## شجاعت او شهامت:

جهاد په اصل کې د شهامت او شجاعت مدرسه ده، خو حقاني صاحب په دې مدرسه کې په ممتاز ډول امتحان ورکړی.

سره له دې چې د پخواني جهاد له وخته تر اوسه پورې حقاني صاحب خپله او د هغه وروڼه او زامن په مکرر ډول د دښمن تر مرګونو تهدیدونو لاندې او ډېر یې شهیدان هم شول، خو دوئ د خپل ځانګړي شجاعت او غیرت له مخې لا هم د یرغلګرو په مقابل کې د مقاومت لومړی صف نیولی او هیڅ کله د دښمن تهدیدونو ته نه دی تسلیم شوی.

که د جهاد په تور دا مریکایانو لخوا د مطلوبینو تور لېست وکتل شي، نو هلته به ښایي له حقاني کورنۍ پرته بل هیڅوک داسې پیدا نه شي چې له پلاره نیولې تر زامنو، وروڼو، وربېرونو، خوریینو او ټولې کورنۍ پورې امریکایانو ته مطلوب دي او د هر یوه پر سر په میلیونونو ډالره جایزې ټاکل شوې دي.

داهم د یوه واقعي مجاهد اختصاصي صفت دی چې وجود یې کفارو ته د زغملو وړ نه وي .الله تعالی په دې اړه فرمایي :وَلاَ يَطَؤُونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ وَلاَ يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلاً إِلاَّ كُتِبَ لَهُم بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ إِنَّ اللّهَ لاَ يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ (التوبة ۱۲۰).



### ځو بُعدي شخصيت:

جامعیت د حقاني صاحب بله هغه مشخصه ده چې د نوموړي شخصیت ته یې تکامل وربښلی .حقاني صاحب لکه ځومره چې په پوځي او حربي تکتیکونو کې ماهر و، همدغومره د سیاست او اداري له هنرونو سره بلد و .لکه ځومره چې یوه پوخ سیاست مدار و، په هغومره اندازه د شرعي علومو جید او متبحر عالم و .لکه ځومره چې د سیاست او حکومت سړی و، په هغه اندازه د ټولنیزو مناسباتو، جرګو او مرکو په نبض پوه و.

لهذا په علمي، سیاسي، نظامي او اجتماعي چارو کې د حقاني صاحب په څیر د ځو بعدیز شخصیت شتون موږ تر اوسه د افغانستان څه چې د سیمې په سطحه اسلامي چارواکو کې نه دی لرلی.

### پر ماحول مسلط مربي:

د اسلامي نهضتونو د تباهۍ او بربادۍ یو ستر لامل دا دی چې د نهضت پلویان د نهضت د مؤسسینو له مسیره منحرف شي .دا انحراف کله د هغوی په فکري لیدلوري کې رامنځ ته شي او کله هم د زور او فشار له وجې او کله هم د مادي تطمیعاتو له امله .

همدا اوس موږ د امریکایانو ترځنګ ډېر داسې کسان وینو چې روزنه او پالنه یې په یوه مکمل جهادي ماحول کې شوې، له اسلامي مدارسو او جامعاتو فارغان شوي، د اسلامي نهضت د بریالیتوب په لاره کې یې ډېرې قرباني ورکړې، مګر له بده مرغه هغوی اوس عملا په داسې نظام کې ولاړ دي چې د دوی له اصلي نشأت او فکر سره ۱۸۰ درجې اختلاف لري.

هو !هغوی اوس له خپل اصلي مسیره په انحراف کې د صلیبي غوبل تر څغ لاندې ولاړ دي او عملي کړه وړه یې د دښمن د مصالحو په ګټه دي.

د دې وجه دا ده چې د یادو اشخاصو اصلي مربیین (روزونکي) په خپل ماحول مسلط نه وو چې تر لاس لاندې کسان یې په خپلې حکیمانه روزنې سره د ننیو مخاطرو له خطره وېرولي او سالم تربیه کړي وی.

حقاني صاحب د خپلو ټولو جهادي مصروفیتونو تر څنګ دې مهم ټکي ته له پیله متوجه او خپل ماحول، خپلې کورنۍ او خپلو تر لاس لاندې کسانو ته یې داسې روزنه ورکړې چې په هر ډول شرایطو کې له خپل جهادي مسیره د یوې ذرې په اندازه انحراف هم نه مني او په پوره ثبات او استقامت سره د ده مسیر تعقیبوي.

لهذا موږ وینو چې همدا د فتنو او آفتونو په عصر کې د حقاني صاحب په ټوله کورنۍ او ملګرو کې داسې شخص نه تر سترګو کیږي چې هغه دې د خپل جهادي مقتدا او فکري لاربښود له لارې منحرف وي، بلکې د ټولې کورنۍ غړي او ملګري یې هر یو په تقوی، ثبات، سربښندنې، شجاعت، شهامت، غیرت او اخلاص کې له یوه او بل سره په سیالۍ کې د خپل صالح مربي پر پله روان دي، و الحمد لله علی ذلك.

ذلک فضل الله یؤتیه من یشاء..

این سعادت به زور بازو نیست
تا نه بخشد خدای بخشنده



# ۱۱ سپتمبر شعارهایی که دروغ ثابت شدند

مسلم بغلانی

پس از حملات ۱۱ سپتامبر ۲۰۰۱م بر امریکا، این کشور فرصت این را دریافت نمود تا زیر نام مبارزه با تروریزمِ جهانی بالای گروه القاعده - گروهی که متهم به حمله بر مرکز تجارت جهانی شده بود - به افغانستان یورش بیاورد و این کشور را تخت خیز برای رسیدن به اهداف استراتیژیکش قرار دهد.

ظاهراً هدف حمله بر افغانستان، ریشه‌کن نمودن افراطیت (تروریزم)، تامین نظم و ثبات جهانی، برقراری صلح برای شهروندان امریکائی و ترویج لیبرالیزم و دموکراسی تعریف می شد. اما در واقع، حمله بر گروۀ القاعده و تصرف نمودنِ کُل خاک افغانستان محض بمنظور ازبین بردنِ تروریزم خلاصه نمی گردید، زیرا نسبت به هر ارزش دیگر داشتنِ سیطره بر جغرافیۀ اروآسیا برای امریکا مهم‌تر تلقی می‌شد.

به نقل از زبیگنو برژینسکی، ستراتیژیست و مشاور امنیت ملی جیمی کارتر، "هر قدرتی که بر اروآسیا نفوذ یابد، نقش تعیین کننده در غربِ اروپا، شرقِ آسیا، شرقِ میانه و افریقا خواهد داشت. "بناءً داشتن تسلطِ بالای این منطقه از جمله اهدافِ استراتیژیک امریکا بوده، زیرا تقسیم قدرت در اروآسیا حتیِ بر نفوذ جهانی امریکا عمیقاً تاثیر می‌گذارد. از سوی دیگر، جورج فریدمن، آگاه امور استراتیژیک، می‌گوید: "ایالات متحده یک هدف اساسی دارد و آن اینکه نمی‌گذارد در اروآسیا قدرت بزرگی عرض اندام کند که توان رقابتش را داشته باشد."

فلهذا، از شواهد و روایات چنین معلوم می‌شود که استمرار و تداوک جنگ از سوی گروه‌های پیکارجو و جنگجو در افغانستان بدون داشتن یک دیدگاه کلان سیاسی، امریکا را در رسیدن به اهداف استراتیژیک‌اش یک گام به سوی موفقیت سوق می‌دهد. زیرا تشدید نا امنی‌ها، ازدیاد رویدادهای انتحاری و انفجارهای سنگین.. بطور خودکار موجودیت نظامیان امریکائی و غربیان را درین سرزمین توجیه می‌کند. و امریکائیان از طریق رسانه‌ها طوری اذعان می‌کنند که گویا پس از خروج جامعۀ جهانی و ناتو از افغانستان، سال ۱۹۸۹م، دوباره در افغانستان تکرار خواهد شد و این کشور در آتش یک جنگ داخلی خواهد سوخت.

ولی پرسش اساسی اینجاست که پس از هجده سال حضور نظامی و ملکی بیشتر از ۴۰ کشور خارجی (هم‌پیمانان) در افغانستان که دارای نیروی نظامی مجهز آراسته با تاکتیک های استخباراتی و جنگی هستند، کجا افغانستان را به پاریس و لندن مبدل کردند که ما از عدم حضور آن‌ها هراسان باشیم؟! کدام آبادی و پیشرفت واقعی اتفاق افتاده که از دست دادن آن مایه تشویش و نگرانی برای ما باشد؟ از ۱۸ سال بدینسو، مردم مسلمان افغانستان همه روزه در سوگ و ماتم جگر گوشه‌های شان قرار میگیرند که با تاسف فردای آن روز خبر مرگ عزیزان دیگر خود را دریافت می‌کنند!!!

مهمتر از همه اینست که هجده سال قبل، امریکا با شعارهای امیدوار کننده ولی در اصل کاذب وارد سرزمین

افغانستان گردید. طوری‌که از طریق رسانه‌ها برای ما گفته اذعان می‌گردید ؛ دیگر جنگ بس است ! ما برای افغان ها زندگیِ مترقی و پیشرفته به ارمغان می‌آوریم، بناء به وطن خویش برگردید ! تروریزم را از بین میبریم و برای شما زندگی سالم تحت چترِ امنیت و آرامش تأمین میکنیم !... به علاوهٔ این، ده‌ها شعار دیگر سر داده میشد و خبرهای عودتِ دوبارهٔ مهاجرین از کشورهای منطقه نیز گرم شد.

از آن زمان تا حال بیشتر از یک و نیم دهه (۱۸سال) -مدت زمانی که حتی ویران‌ترین حکومت جهان میتوانست سر پای خویش ایستاده شود - میگذرد، ولی متأسفانه چرخ حرکتِ افغانستان بسوی مخالف روان است؛ فقر از ٪۲۰ به ٪۵۲ رشد نموده است و درحال افزایش میباشد ، بیش از ۴ میلیون افغان معتاد به مواد مخدر گردیده که ۱ میلیون آن را زنان تشکیل میدهد ، بر اساس گزارشِ سیگار، همه روزه صدها تن از افراد ملکی و نظامی در افغانستان کشته می‌شوند ، گراف فساد اخلاقی و تن فروشی روبه افزایش است و فساد اداری بطَور شرم آوری بیداد می‌کند... و امثال این ده‌ها مواردِ افتضاح‌آمیز سیاسی، اقتصادی و اجتماعی دیگر.

پس جامعهٔ جهانی و امریکا کدام آرمان‌ها و امیدهای ما را بر آورده ساخت؟ به کدام ترقی و پیشرفت که شعار می‌دادند، دست یافتیم؟!

## دا پروینو نقش او نګار کور موزیم شي !

مصلح م

دې کورنۍ ته د دارالآمان ماڼۍ څه مانا لري؟ دا به د تاجبېک ماڼۍ رغونه څه کړي؟ دا به د اماني دورې تمثیلونه څه کړي؟

دې کورنۍ ته دا هر څه دروغ ښکاري، دوی ته د غازي او ناغازي توپیر د چغو نه بلکه د عمل خبره ده، دوی ته دا توپیر د هغه شاجور په تسار او د بمونو په غرمبا کې دی، چې د کوم پردي پر ځای د دوی نازولي پرې ټوټه ټوټه او اندام اندام الوځي... د دوی لپاره دا توپیر د هغه پرتې او الوتې وینې رنګ دی چې د دوی د کور پر دېوالونو نقش ده... تاسو د دې کوچني په سترګو کې هغه ورانه دنیا وګورئ که نه، سوله به وشي او دا به هېڅکله هیر نه کړي، چې د ده د کور مشران یې تر ویشتو وروسته همدلته پر بم واچول او وچول، پر دېوال دا نګار شوې وینه که وهم مینځل شي د ده له سوچ او زهنه نه مینځل کېږي... زمونږ دا جګړه له پیله همدغسې منتقمه ده، له همغه پیله افغانانو د خپلو بندیانو او هره ورځ شهیدانو پوښتنه کوله او له همغه اولې ورځې یې د خپل پت او عزت سوال درلود... د دارالامان ماڼۍ پر ځای باید دا پروینو نقش او نګار کور موزیم شي!







# ټرمپ څه وکړل د څه لپاره؟!

شفیق م

په داسې حال کې چې له قطر څخه امریکایي او طالب پلاوي د خبرو د نهه پرمختګ او وروستي توافق څخه خبر ورکاوه د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ پر خپل ټویټر په لنډکي پیغام کې له طالبانو سره خبرې لغوه اعلان کړې.

ظاهراً ټرمپ په کابل کې د یوه برید په غبرګون کې چې یو امریکایي سرتېرى هم پکې وژل شوى ؤ دغه اعلان وکړ، خو د نژدې یوه کال خبرو او له بېلا بېلو پړاوونو تېرېدلو وروسته دغه پلمه ډېره بې معنا وه. له ورایه ښکاري چې د پردې تر شا اصلي مساله بل څه ده. د طالبانو ځینې سرچینې وايي چې طالبانو کمپ ډېوېډ ته له تګه ډډه وکړه ځکه دغه خبرې لغوه شوې

په هر صورت کابل د ټرمپ په اعلان نا اعلان شوی جشن ونمانځه، ارګوالو له غني تر امرالله او صدیقي او نورو پورې ډېرې قلقلې وکړې، دوی فکر کوي چې ویې ګټله، د سولې د خبرو له لغوه کېدو سره به یې انتخاباتو ته د نړیوالو پام را واوړي او د پینځو نورو کلونو لپاره به د ارګ تخت او بخت بیا د دوی په قباله وي. ښایي داسې شي هم، خو څو ټکیو ته باید پام وکړو:

لومړی په قوي امکان به د طالبانو او امریکا تر منځ د خبرو او جوړجاړي خبره بېرته را توده شي، د پردې تر شا چې اختلاف پر هر څه ؤ دواړه لوري به یو بل ته لر ور وښویېږي او مساله به را توده کړي.

دوهم اوسنی وضعې ته په پام د ټرمپ له دې اعلان سره چې ګواکي طالبانو په تېرو څلورو ورځو کې دومره زیان لیدلی چې په تېرو لسو کلونو کې یې نه ؤ لیدلی، موږ ولیدل چې طالبانو په دوو ورځو کې د هېواد په شمال کې درې ولسوالۍ ونیولې. طالبان اوس له هغه حالته راوتلي چې د امرالله صالح او یا د ټرمپ په لاپو او ټاپو دې را قابو کړای شي. په داسې صورت کې به انتخابات څه ډول ترسره کېږي چې طالبان کولای شي هممهاله څو ولایتونه په امنیتي لحاظ سخت تر تسخیر او ګواښ لاندې راولي؟

دغسې انتخابات به څومره افغان ولس، نور نوماندان او نړیواله ټولنه قانع کړي؟ زموږ باور دا دی چې انتخابات که ترسره شي حاکم ټیم به په یوه لوی بحران کې وغورځوي. ځکه د انتخاباتو بحران را قابو کول به د اوسنۍ ادارې له توانه ډېر اوچت وي، بیا به نړیواله ټولنه مداخله کوي او بیا به خدای مه کړه څو سره یو نظام پر ولس تپل کېږي چې په قوي احتمال به غني پکې لومړی لوری نه وي.

په هرصورت طالبان اوس په پوځي او سیاسي میدان کې یو منل شوی قوت دی چې دامریکا او ټرمپ په فشارونو او ټویټ میټ نشي متزلزل کیدای او نه هم دغني او عبدالله دانتخاباتی کمپاینونو په جذابو کړیکو طالبان پیکه کیدای شي.

امام ابو حنیفه رحمه الله نه پوښتنه وشوه چې دومره زیات علم مو څنګه ترلاسه کړ؟! هغه وویل: خلکو ته په علم ښودلو کې مې بُخل نه دی کړی او نه مې د علم په زده کړه کې له چا مخ اړولی. عمدة القاري (۲۱۰ / ۲)




## شعر

یـا الهـی! قلـب مـن را، خـالی از اغیـار کـن!
گر جفاجو است چـو منصورش بُلند بر دار کن

عصر تحصـیل و تمـدن هسـت ایـن دوران مـا
ذهـن و قلـبم را ز علـم و معرفـت سرشـار کـن!

شـخص دانشـمند، اسـتقلال فکـری بایـدش
ورنـه جُهـالِ زمـان را، شـهره یِ بـازار کـن!

بـی نیـاز و لایزالـی، خـالقِ یکتـای مـا!
ملـت مظلـومِ مـا را بـر جهـان، بـادار کـن!

دوسـتت دارم الهـی! بنـدگی ات میکـنم
گـر بـه دوزخ مـی بَـری او را بـه مـن گلـزار کـن!

بـی کـس و هـردم شـهیدم از سـفرها خسـته ام
یـا الهـی! بنـده ات را صـاحب دلـدار کـن!

بنـده یِ پُـر از گناهـت مغفـرت دارد امیـد
خـوش طبـع مسـکین را در زنـدگی اعمـار کـن!.

مرتضی خوش طبع ۱۳۹۸/۵/۲۵هـ ش




ورځيـانو ددې ښـار کـې دا خـبر لـه منځـه تللـی
"بـاور پـه چـا پـه کـار نـه دی، بـاور لـه منځـه تللـی"

د نفـس بنـدګي ده، بـد هـم ښـه نومـول کيـږي
او شر تـه خيـر وايـي تـه وا شر لـه منځـه تللـی

د خيـر خـبري کيـږي خـو تـاثير پـه ډېـرو نکـږي
څـه زړونـه کانـه شـوي څـه اثـر لـه منځـه تللـی

د بـل عيبونـه ښـه ويني خـو خپـل ځـان تـه ړانـده وي
بـس ځـان تـه ددې خلګـو دی نظـر لـه منځـه تللـی

د ظلـم او وحشـت طوفـان خپـل اوج تـه رسـيدلی
منګـی ټـوټې ټـوټې دی شـين ګـودر لـه منځـه تللـی

فکـري جګـړه روانـه ارتـداد پـه ډېرېـدو دی
د تـوري زلمـی بـچ دی غافـل سر لـه منځـه تللـی

ای! دادی پـه دنيـا کـې د جهـاد اعجـاز ښـکاره شـو
ملنـګ طالـب فـاتح دی، ښـکيلاګر لـه منځـه تللـی

انـس تـه دمرګـي ګواښـونه مـه کـوه باګرامـه!
ستا زور لـه منځـه تللـی دی ستا زر لـه منځـه تللـی

باګرام زندان

## مجاهده مشره

م عبدالحق حقاني

ای د ننگونو غیرتونو دنگ منار حقاني
په قربانیو دې ملت کړې افتخار حقاني
ای د اسلام د فاتحینو د کاروان اتله
رحلت دې وکړو زمونږ له څنګه په تلوار حقاني
د مومنانو ستر قایده مجاهده مشره
لوړ دې شو پاتی د جهاد عظیم کردار حقاني
ستا دیانت او شجاعت ته صد سلام دی مشره
ای په اخلاص او په تقوی مین سالار حقاني
ډېر تکلیفونه دې ګاللي د اسلام په خاطر
څلور بچیان دې کړل قربان د حق په لار حقاني
هر یو غازي دې په غیرت او قربانۍ پوښلی
درس دې ورکړی دی هریو ته د ایثار حقاني
د وخت خالد وې حقاني جلال الدین مرحومه!
ستا تول ژوندون و غلیمانو ته اخطار حقاني
خدای دې جنت کې ورته ستا ګاونډیتوب نصیب کړي
دا عبدالحق درپسې ډېر دی نا قرار حقاني

## مدرسه شهیده

شاعر مشال

هم طالب جان هم مدرسه شهیده
هم یې کتاب هم یې حجره شهیده
ډیر ماشومان دی پکی وسوځول
هم یې دستار هم سپاره شهیده
ځکه ژړیګم ای خوږو ملګرو
زمونګ دکلی ګل دسته شهیده
ورپسی شوو تول دیوانه له غمه
خدایه زمونګ دزړه توته شهیده
زه یی اوس کوم زخم تکور کړم ربه
د ګران وطن هره کوڅه شهیده
کړه یی بمبار راته وحشی کافرو
ده مدرسی مو مناره شهیده
دمشال ګوتو کی قلم سلګی کړی
ده مشال هم شوه ترانه شهیده

## شعر / شفاعت ریحان

کرلي مې په سترګو کې خوبونه دې شریکه!
د چا د ماتو هیلو تصویرونه دې شریکه!
د امن بوټي ځکه وده نه کړي په دې کور کې!
راوري نړیوالو ډېر بمونه دې شریکه!
ته یار مې یې نو ځکه درته وایم د ژوند حال مې!
غمونه دې آهونه دې دردونه دې شریکه!
بلاله ! اذانونه دې خاموش چې چیري نه کړي!
لا اوس هم دلته ډېر ویده قومونه دې شریکه!
د زړه ډبوه مې ځکه رڼا نه کوي جانانه!
پراته پرې ستا د هجر ډېر ګردونه دې شریکه!
دا زما د ارمانو په هدیره کې اندیواله!
د پاکو شهیدانو زیارتونه دې شریکه!
بانه دې چنارونه دې او سیوري یې پراته دي!
اباد دې پرې د اوښکو ګودرونه دې شریکه!
ته هم لکه چې چا باندي مین یې " شفاعته!
غزل کې دې د میني انځورونه دې شریکه!

## دمینې دود

غزل: ثناء الله معصوم

دلته په پَل دخاورو خلک امیدونه تړي
دلته په ماتو څانګو خلک دي چې زړونه تړي

دلته هر چا له هجره زخم په زړګي خوړلی
د بیلتانه له لاسه هر څوک د زړه ورونه تړي
دلته هر چا نزرانه کړی دی جانان د مینې
بیا یې په خړ مزار جنډې او بیرغونه تړي
دلته ګودر کې نه منګی شته نه تېپې او قیصې
نجونې لګیا دي څو زلمو ته ملابندونه تړي
دلته د مینې دود ځوانانو دومره تود ساتلی
ځینې خو آن په خپل خواړه بدن بمونه تړي

اوس د معصوم د زړګي زخم پوري نه خاندي څوک
اوس تول لګیا دي د خپل مات زړه پرهرونه تړي



د کابل د فتحې برخوال

# ملا نقیب الله ذاکر ژوند ته کتنه

لیکوال: عاکف مهاجر

چا تاریخ جوړ او چا تاریخ خرڅ کړ

په تیره لنډه څلویښت کلنه دوره کې په افغانستان ډول ډول واکمنۍ راغلې او تیرې شولې خو چا تاریخ جوړ او چا تاریخ خرڅ کړل.

په دغه موده کې یو شمیر ځوانانو خپله ټوله شتمني او خوږ ژوند د الله په لار کې قربان کړل تاریخ یې جوړ خو ځینو نورو بیا یو وار له روسانو سره د خپلو خلکو د وژلو لپاره د څو پیسو په خاطر ځان وقف کړ او بیا یې اوس د امریکایانو لپاره خپل ناموسونه لیلام، خپل عزت یې وپلوره او د ډالرو لپاره یې اشغال ته جواز ورکړ خپل ازادي غوښتونکي ملت باندې یې ډول ډول نومونه کیښودل هغوی خپل ځان او ټوله کورنۍ د تاریخ پاڼو کې په ډیر بد نوم ثبت کړل.

هوکې ملانقیب الله ذاکر هم د هغو زلمیو له جملې څخه وو چې ځان یې قربان او د دنیا له ټولو رنګینو سره یې خدای پاماني وکړه خو تاریخ یې جوړ کړ.

**د کابل د فتحې برخوال شهید ملا نقیب الله ذاکر:**

شهید ملانقیب الله ذاکر دشهید صوفي عزیزالله ځوی په قوم مومند شاوخوا ۴۸ کاله پخوا دلوګر ولایت دمرکز اړوند دپادخواب شانه کلي په یوه دیندوسته او جهادي کورنۍ کې دې فاني دنیا ته سترګي وغړولي.

**زده کړې:**

شهید ذاکر تقبله الله لومړنۍ دیني زدکړي دکلي په جومات کې له ملا امام څخه وکړې او د منځنیو زده کړو لپاره یې دهجرت دیار پاکستان د پیښور ښار ته ځیرمه کډه وکړه او په ګڼو مدرسو کې یې زده کړې وکړې چې د هغو له جملې څخه یوه یې د کوهاټ نعمانیه مدرسه ده.

نوموړي شهید د دیني زده کړو ترڅنګ عصري زده کړې هم کړې وې چې مکتب یې تر ۱۲ ټولګي پورې دپیښور په مجاهد لیسه کې ویلی وو او د دولسم صنف د فراغت شهادتنامه یې له همدغې لیسې ترلاسه کړې وه.

**جهاد او مبارزه:**

له افغانستان څخه د سرو لښکرو له وتلو وروسته چې کورنۍ جګړې پیل، یو وحشت او ظلم پاته نه شو چا په پاټکونو له خلکو ناموسونه کښته کول، چا هلکان ودول، چا رقص مرده کولو، چا له ښځو سینې پرې کولې، چا بیا د زنانه وو د هغه حال نندارې کولې چې ماشوم یې پیدا کیږي او چا خلک د خپل قدرت لپاره په ډول ګول نومونو وژلو.

کابل یې په ویرانه بدل او ښار یې په وینو ولړلو، خلک یې په کلیو کې هم په امن پرې نه ښودل او د روسانو پر وخت یې خلک شکر ویستلو ته مجبور کړل خو په همدغه وخت کې یو سپین او سپیڅلی لښکر د مدرسو د ګلالیو او پاکو طالبانو کاروان د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد په مشرۍ خدای جل جلاله راپیدا کړ، چې دغه هر څه ته یې د پای ټکی کېښود او خلکو ته یې د جهاد ثمره وښوده یو اسلامي، شرعي او بې نمونې نظام یې پلي کړ چې د خلکو هر څه پکې په امن او خلکو د ارام ژوند ساه اخیستله.

د همدغه کاروان ملګری د نعمانیه مدرسې طالب شهید ملا نقیب الله ذاکر هم وو.

شهید ذاکر هغه مهال له دغه سپیڅلي کاروان سره یوځای شو چې تازه د دغه چمن غوټۍ په هیواد کې وغوړېدلې او پیل یې له کندهار څخه وشو چې آن تر کابل بلکې د هیواد تر ۹۵ فیصده خاورې یې وږمې ورسېدلې او خلک یې پر خوشبویي مزین او خوشبوداره شول.

دا چې لیکنه اوږده نشي او لوستونکي خسته نه کړي له نورو کیسو تیرېږم کاغذ رالنډوم او توري رانغاړم.

شهید ذاکر تقبله الله د پکتیا په لوړو څوکو د ننګرهار په علم او ادب پوښلې خاوره د لوګر په جهادي ځمکه او د هیواد په ګوټ ګوټ کې خپله جهادي تنده خړوبه کړه.

شهید ذاکر تقبله الله له سید کرم بیا تر ازرې، سپینې شګې او بیرته تر ازرې بیا تر حصارک او له همدې لارې له اتل او نومیالي شهید ملا امین الله بورجان سره د کابل تر سروبي بیا تر ننګرهار او بیرته تر سروبي پورې ملګرتیا وکړه، چې ملابورجان تقبله الله بیا په تنګي کې له فاني نړۍ سره مخه ښه او د اجل داعي ته یې لبیک و وایه خو شهید ذاکر تقبله الله دغه کاروان سره آن تر ارګ تخار، بامیانو او ځینو نورو سیمو پورې مزل وکړ.

د شهید ذاکر تقبله الله ورور مولوي عتیق الله عزیزي وایي کابل فتحه شو ډلې ډلې طالبان یو خوا بل خوا ګرزېدل څوک ارګ ته روان وو چا د پخواني کمونیست ډاکټر نجیب د جسد د سیل لپاره بیا اریانا چوک ته ځان رسولو، څوک بیا نورو لوریو ته روان وو خو مونږ د ارګ په لوري رهي شولو.



هغه وایي د ارګ له دروازې ننوتلو د ګلخانې ماڼۍ سره چې ګورو ملا نقیب ذاکر له څو تنو نورو ملګرو سره ولاړ دی چې ور نږدې شولو ګورو د طالبانو یو مشر- چې وروسته د کورنیو چارو وزیر هم وو ملا عبدالرزاق هم په ځمکه ناست دی.

عزیزي صیب وایي مونږ ستړې مشې او روغبړ وکړ چې ناستو ملګرو او ملا عبدالرزاق ته مو د کابل د فتحې مبارکي

ورکړه خو هغه راته وایی د کابل د فتحې مبارکي باید ملا نقیب ته ورکړل شي ځکه د هغه په دې فتحه کې غوښینه ونډه وه.

نوموړی د ورور له خولې وایی چې د نغلو سره په تنگی کې هغه مهال چې جگړې زور واخیست دواړو لوریو د بریا هڅې کولې، یو تانگ وو چې زمونږ ملگري ترې ډیر تنگ وو څوک به چې مخته روان شو هغه یې په نښه کولو، وړاندې د ملگرو مهمات خلاص شول خو چا هم دېته زړه نه ښه کولو چې مهمات یوسي ماته ملا عبدالرزاق و ویل چې ته یې وړې که زه یې یوسم چې له همدې سره زه روان شوم او بایفور مې له مرمیو ډکه روانه کړه.

عزیزي صیب د شهید ذاکر له قوله وایي چې ډیرې مرمۍ راتلې په گردونو کې پټ شوم خو د خدای جل جلاله په نصرت له سیمې تیر شوم او ملگرو ته ورسیدم چې هلته د مرمیو د کښته کولو توان هم چاسره نه وو خو مرمۍ مې هم کښته کړلې.

شهید ذاکر وایي بیا مو ملکرو ته د ټانگ د ویشتلو و ویل چې د ساحې د سخت والي له امله څوک ورته تیار نه شول او په همدې توگه مې خپله راکټ واخیست ټانگ مې و ویشت او د دښمن خط مات عسکر یې تیت او پرک په منډو شول.

د طالبانو اسلامي تحریک په افغانستان څو کاله حکومت وکړ چې وروسته په ۲۰۰۱ کال د ستمبر میاشتې په یوولسم امریکا کې ستر بریدونه وشول له هغه وروسته امریکا پر افغانستان برید وکړ د طالبانو نظام یې نسکور خو دغه لښکر یې مات نه بلکې یو واقعي تکتیکي شاتگ ته اړ کړ چې څه وخت وروسته بیرته منظم او دا دی اتلس کاله یې د ټولې کفري نړۍ په وړاندې په میړانې سره مبارزه وکړه.

شهید ملا نقیب ذاکر هم له لږ دمې وروسته بیا زنگ وهلی ټوپک راواخیست او د بي باون، بې پیلوټه، زرهـي ټـانگونو او کـروز توغنـدیو پـه وړاندې یې په همدغه ټوپک د خدای په نصرت متکي ذاکر مقابله شروع کړه چې په همدې توگه اتلس کاله د سپر طاقت په وړاندې په میړانه وجنگیده او غابښ ماتوونکي گوزارونه یې ورکړل.

### جهادي خدمت یا مسئولیتونه:

شهید ملا نقیب الله ذاکر تقبله الله د تیر امارت په دوران کي دکورنیو چارو دوزیر، ملا عبدالرزاق اخند خاص مالي، د ترانسپورټ مسول او مختلف جهادي خدمتونه ترسره کړي دي، او په اوسني دوران کې بیا د لوگر ولایت د استخباراتو د مرستیال، د ولایتي کمیسیون د غړي، د مرکز د کمیسیون د غړي په توگه یې د خپلې ډلگي د سرپرستي تر حنگ گڼ مسئولیتونه ترسره کړي دي.

هغه د شهید میر احمد گل هاشمي تقبله الله د څنگ ملگری او ښی لاس یادیدلو چې په تیر او اوسني دور کې یې خورا سختې شیبې ورسره یو ځای تیرې کړې وې.

**شهادت:** شهید ملا نقیب ذاکر د ۱۴۴۰ هـ ق کال د ذوالحجې میاشتې په ۱۱ نیټه چې د ۱۳۹۸ هـ ش د اسد د میاشتې له ۲۲ او د ۲۰۱۹ ع م کال د اگست میاشتې له ۱۳مې نیټې سره سمون خوري د لوگر مرکز اړوند دوشنبې سیمه کې د لوی اختر په دوهمه ورځ په یوه مخامخ جگړه کې وروسته له هغه د شهادت جام نوش کړ چې د غرب د مزدورانو یو ټانگ یې و ویشتلو او دوهم دی تېپي کړ چې وروسته یې روغتون ته پر لاره ساه ورکړه او د اجل داعی ته یې لبیک و وایه.

انا لله و انا الیه راجعون.

روح دې یې ښاد او یاد دې تل تر تله وي.



# د حدیثو بڼ

## له یو بل مالیاره بې برخې شو!

لیکوال: مولوي عطاءالله مبارز

**زوکړه او زده کړې:**

شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد عبدالمالک (القدوسي) د شیخ الاسلام حضرت مولانا محمد عبدالقدوس جان رحمه الله زوی، د حضرت مولانا محمد نبي جان رحمه الله لمسی او د مولانا عبدالمنان رحمه الله کړوسی، په قوم حسین خیل د کابل ولایت د موسهي ولسوالۍ د عبدالروف قلعه اوسیدونکی.

په [۱۳۴۴] ه ش چې ۱۳۸ه ق سره سمون خوري، د رمضان المبارک په پنځلسمه نیټه د پلازمینې کابل د چهارسیاب ولسوالۍ د چارسو په کلي کې دنیا ته سترګې غړولي دي.

ابتدائي سبقونه او اکثره کتابونه یې له خپل والد حضرت شیخ صاحب څخه ویلي و، د طالبي ډېره زمانه یې په خپل کور کې د خپل پلار (حضرت شیخ صاحب) تر مرحمت لاندې تېره کړې وه.

له خپل نیکه حضرت لالا صاحب رحمه الله څخه یې (هدایة النحو)؛ (کافیه) او (جامي) مبني ویلي و. ځینې معقولات یې له شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد نعیم (کوڼ اخند زاده) رحمه الله څخه ویلي و.

په مدرسه ملیه میرزا ډهیر ؛ جامعه اسلامیه زرګري او جامعه اسلامیه محمدیه چراټ کې یې هم سبقونه ویلي و

ځینې فنون یې له مولانا ګل فرازخان رحمه الله ؛مولانا عبدالباري شاه رحمه الله ؛ مولانا امیرحاتم رحمه الله ؛ مولانا ګلاب الدین رحمه الله او له مولانا غلام حقاني رحمه الله څخه ویلي و. اوله هدایه یې له خپل تره شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالرشید رحمه الله څخه ویلې وه.

د حدیثو د دورې پر کال یې بخارى شریف یې د حضرت مولانا حسین احمد مدني رحمه الله له خاص شاګرد شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الروف ترناوي رحمه الله څخه ویلی و. د فنونو دوه ثلثه کتابونه او یو څه حصه مسلم شریف ؛ څه برخه بخاري شریف، څه برخه ترمذي شریف، ابو داود شریف مکمل، ابن ماجه، نسایئ، موطائین، طحاوي شریف، مشکاة شریف، یو جلد جلالین شریف او بیضاوی شریف یې د خپل والد حضرت شیخ صاحب څخه ویلي و.

په کال [۱۴۰۹]ه ق کې یې په جامعه محمدیه چراټ کې لویه دوره وکړه او په یوه عظیم الشانه جلسه کې د سترو علماو کرامو په لاس، چې په رأس کې یې د (حرکت انقلاب اسلامي افغانستان) ګوند مشرمولوي محمد نبي محمدي رحمه الله و، د د ستار فضیلت تاج ورپه سر کړای شو.

**تدریس او علمي بوختیاوې:**

له فراغت وروسته تر [۱۴۲۷]ه ق پورې یې په جامعه اسلامیه محمد یه چراټ کې د تدریس چارې روانې وساتلې، چې بیلا بیل فنون یې تدریس کړل، او په اخیري څلورو کلونو کې یې وره دره تدریس کړه.

په کال[۱۴۲۸] ه ق کې یې د باغبانانو په (نور المدارس) مدرسه کې د حدیثو د ورې او لویې دورې د شیخ په حیث خدمت وکړ، په کال [۱۴۲۹]ه ق کې په (دار العلوم اسلامیه محمدیه ماشوخیل) کې د حدیثو د تدریس د خادم په حیث مقرر شو.

د ماشوخیلو په جامعه محمدیه کې له دوه کلن خدمت وروسته د خیبر پښتونخوا په ریګي سیمه کې د [احیاءالاسلام] په نوم یوه مدرسه کې د شیخ الحدیث په توګه او له هغه وروسته په دوهم ځل بیا د باغبانانو په (نورالمدارس) دیني مدرسه کې د مبارکو احادیثو د استاذ په توګه دنده پیل کړه، چې ما لیکوال ته یې هم د استادي شرف حاصل شو.

(دلته یوه یادونه اړینه ګنم چې ارواښاد شیخ القران والحدیث مولانا محمد عبدالمالک القدوسي رحمه الله زما ماما، د حدیثو استاد او طریقت شیخ و.)

په نورالمدارس کې تر یو کلن خدمت وروسته یې په پنډو چوک کې د [ روضة الاسلام] په نوم په یوه ستره دیني مدرسه کې له ارواښاد شیخ القران والحدیث حضرت مولانا محمد یوسف رحمه الله سره یوځای د حدیثو لویه دوره شروع کړه. او دغه راز یې د (پیبي) په سیمه کې په (جامعه نصیریه) او د صدر په سپین جومات کې د شیخ الحدیث په حیث خدمتونه سرته رسولي دي.

د شیخ الحدیث مولانا عبدالرشید صاحب رحمه الله له وفات وروسته د پاتې درسونو د تکمیل لپاره د شیخ عبدالرشید صاحب زامنو نوموړی د شیخ عبدالرشید صاحب ځای ناستی وټاکه چې له مرحوم شیخ صاحب رحمه الله څخه پاتې درسونه یې په پوره ښه توګه سرته ورسول او طالبان ترې ډېر خوشاله وو.

بیا په [۲۰۱۷]م کال کې د کابل ولایت په بني حصار ولایتیو سیمه کې د [سراج الاسلام] په نوم په یوه دیني مدرسه کې د شیخ الحدیث په توګه وټاکل شو او په ډېره مینه یې طالبانو ته لویه دوره درس کړه او لسګونو طالبانو پرې د ملایي پګړۍ وتړلې.

حال داچې د کینسر مرګوني ناروغۍ پرې تازه حمله کړې وه او ورځ په ورځ یې مرض ډېریده.

بیایې دڅوند په وروستیو کې دکابل ولایت بدخاک سیمه کې د [جامعه نعمانیه] په نوم د مولانا محمد ګل وهاج صاحب په مدرسه د حدیثو د خادم په حیث په دنده بوخت و. او سلګونو طالبانو ته یې په داسې حال کې د مبارکو احادیثو دوره سرته ورسوله چې ناروغي یې بیخي اوج ته رسیدلې وه او د (کیمو تراپي) په نوم خطرناک واکسینونه یې لګول او نږدې له یوه کال څخه یې په مړه خیټه خوراک او څښاک نه و کړی.

د تدریس تر څنګ شیخ صاحب رحمه الله د تصنیف برخه هم پاللې او له ځان وروسته یې ځینې علمي اثار پریښي دي، چې یو څو یې په لاندې ډول دي:

۱: الضوء الامع فی العلم النافع (عربي)

۲: قلائد اللؤلؤ والمرجان في حیاة شیخ عبدالقدوس جان (پښتو) چې اوس یې په فارسي ژباړه کار روان دی.

۳: له کیسټونو د شیخ الاسلام حضرت مولانا عبدالقدوس جان رحمه الله د تقریرونو ترتیب، چې د مرحوم شیخ صاحب رحمه الله په غوښتنه او اشراف یې وراره مفتي عبدالمهیمن صاحب دا کار پیل کړی او په نږدې راتلونکي کې به چاپ شي، ان شاءالله.

### د حج او عمرې سفرونه ا و د طریقت بیعت:

د ظاهري علومو تر څنګ شیخ صاحب رحمه الله باطني علومو ته هم پوره پاملرنه کړې وه، او د طریقت بیعت له خپل والد حضرت شیخ الاسلام مولانا محمد عبدالقدوس جان رحمه الله څخه په کال (۱۴۱۴ه.ق) د رمضان المبارک د( ۲۷) په شپه کړی و، او د خلافت اذن ورته د حضرت شیخ صاحب له لوري په کال (۱۴۲۰ ه.ق) کې ورکړل شو.

چې د خپل پلار او مرشد له وفات وروسته یې نوموړی ځای ناستی و او په ډېره ښه توګه یې د ا لړۍ پرمخ یو وړه او په زرګونو مریدان یې وروزل.

حضرت شیخ صاحب رحمه الله درې ځله دبیت الله شریف حج ته او ډېر ځله عمرې ته تللی و، لومړی ځل په کال (۱۴۱۲). دوهم ځل په کال (۱۴۱۳ه.ق) او په وروستی ځل په کال (۱۴۲۴) کې د حج مبارک سفر ته تللی و.

### وفات او د جنازې مراسم:

په جامعه نعمانیه کې د وروستي درسي کال له پای ته رسیدو وروسته یې په رمضان میاشت کې ناروغي ډېره شوه، د درملنې په موخه یې ورونو پېښور ته راوست او په (رحمن هسپتال) کې یې داخل کړ، چې نږدې یوه میاشت هلته بیستر و، له هغه وروسته د اسلام اباد (قائد اعظم هسفتال) د کینسر په څانګه کې داخل کړای شو، له درې ورځو بېرته پېښور ته راوړل شو او دکویتیانو هسفتال په (ICU)وارډ کې داخل کړای شو؛ چې بیلاخره دزرګونو طالبانو اومجاهدینو استاذ، دعلم اوعرفان ځلانده لمر او د تصوف او طریقت ستر مینار په اتلسم جولایي کال [۲۰۱۹]م د پنجشنبې په ورځ د سهار په شپږ بجې وفات شو. انا لله وانا الیه راجعون .

د نوموړي جنازه په هماغه ورځ خپل پلرني ټاټوبي ته یو وړل شوه او د کابل ولایت د موسهي ولسوالۍ د عبدالرؤف قلعه په سیمه کې د زرګونو شاګردانو، مریدانو او مینه والو په شتون کې یې د جنازې لمونځ د نوموړي د ورور شیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالرقیب (حفظه الله) په امامت اداء شو. او د خپل والد شیخ الاسلام محمد عبدالقدوس جان الکابلي رحمه الله تر څنګ خاورو ته وسپارل شو. روح دې ښاد او یاد دې تل وي.

# بنـــدي د نيوونـکي نــه اوري!

حامد مير

ژباړه: عبدالله

حامد مير پاکستانی ژورنالیست دی او له ډېرې مودې څخه د افغانستان په چارو کې شنونکی دی، لیکنې یې هـم د افغانستان په باب اکثره عادلانه او واقعیت لرونکې دي او ادبي ذوق لري؛ دلته یې تاسې ته یـواځې د هغـه د مضـمون ژباړه را اخلو ، نور تاسې او دا مضمون:

موږ هغه ونیو او بندي مو کړ، په هغه دا شک و چې هغـه لـه خپل دښمن سره پټې خبرې رواني کړې وې، څو کاله په بند کې لـه ساتلو وروسته یوه ورځ داسې راغله چې هغـه مـو خـلاص کـړ او ورته ومو ویل چې: ځه! اوس لاړ شه او لـه دښـمن سره دې خبرې وکړه.

هغه د بل چا په خوښه بندي شو او خوښـې هـم د بـل چـا پـه خوښه شو، لا خلاص نه و چې دښمن سره په مـذاکراتو کولـو کـې شامل شو او مـوږ دا نغـارې شروع کـړې چې مـذاکرات زمـوږ لـه وجې شروع شول او موږ په مذاکراتو کې غټ کردار لوبوو، خو یـو ناڅاپه مذاکرات ودرېدل او که دا مذاکرات بیـا ځلې شروع نـه شي نو د ناکامۍ الزام یې هـم مـوږ پـورې تـړل کیـږي او یـوازې د تـور (الزام) خبره نه ده، ښائي چې خبره ډېره سخته تمامه شي.

موږ بیغمه یو، خـو نـن هـم د ډېـرې بـې وسـۍ سره مـخ یـو، یوداسې سړي ته په طمعه یو چې څو میاشتې دمخه زمـوږ بنـدي و، چې نوم یې ملا عبـدالغني بـردار دی، هغـه چې پـه دوحـه کـې لـه امریکایي پلاوي سره د مذاکره کوونکو ډلې مشر دی.

ملا برادر چې کله په ۲۰۱۰م کال په ۸فـروري کراچـۍ ښـار کې ونیول شو، نو ځینې امریکایي ورځپاڼو دا دعـوه هـم کـړې وه، چې د نوموړي د نیولو لپـاره معلومـات امریکایـانو ورکـړي و، او دا هم ویل کیدل چې هغه وخت (آرمـي چیـف) د پـوځ مشـر جـنرال اشفاق کیاني تقاعد (ریټائرمنټ) هم نژدې شوی و، خو هغه دخپلې دندې او ملازمت مودې اوږدول غوښتل، نو له دې وجې هغوی ملا برادر ونیو، ترڅو د افغـان سـولې پـه مـذاکراتو کـې د دوی اهمیـت زیات شي او ددې اهمیت له مخې هغه ته په دنده کې توسـیع وشي خو د افغان سولې جریان مخته نه ولاړ، ځکه چې ملا برادر له بندي کیدو نه پس د خپل (جیلر) بندي کوونکي د خبرو منلو څخه انکـار وکړ.

تېر کال د امریکـا ولسمــشر ډونالـډ ټرمـپ د افغانسـتان لپـاره خلیلزاد خپل ځانګړی استازی وټاکـه، ترڅـو هغـه وکـولای شي لـه طالبانو سره د سولې مذاکرات بیا پیل کړي.

زلمي خلیلزاد دا موقف ونیـو چـې د سـولې مـذاکرات د مـلا برادر له خوښې کولو پرته نه ترسره کیږي، لـه همـدې وجـې یـې لـه پاکستانه د ملا برادر د خوشې کولو غوښتنه وکړه.

۲۰۱۸م کال اکتوبر کې پاکستان ملابـرادر لـه بنـده خـلاص کړ، نو طالبانو هغه فـوراً د سیاسي دفـتر او د مـذاکراتو وفـد مــشر وټاکه، مذاکرات شروع شول، نو ځینـو کسـانو چـې د افغانسـتان د ځمکنیو حقائقو څخه ناخبره و، خو په افغاني امورو کـې دخیـل او شننونکو دعوه یې کوله، د مذاکراتو لـه کامیابېـدو دمخـه یـې لاپـې شروع کړې او د کامیابۍ دغـه کریـډیټ اخیسـتلو لپـاره یـې منـډې ترړې وهلې، همدا مهال دوحه کې له طالبانو سره به چې کله هـم د مذاکراتو په اړه رابطه وشوه، نو هغوی به همـدا ویـل چـې د سـولې مذاکرات زموږ نه دي، بلکې د ټرمپ ورته ضرورت دی، موږ سـوله غواړو خو دسولې په نامه معامله نه کوو، د مذاکراتو په وخـت کـې

طالبان په وار وار پاکستان را دعوت کول، هغوی له "لیت" او "لعل" کاشکې او امید دی، کلمو څخه کار اخیست، ترڅو دا تور پرې ونه لګیږي د پاکستان ګوډاګیان دي، خو سره لدې هم پاکستان کې ځینو خلکو له دوی سره تصویرونه انځور کړل او غوښتل یې چې خپل قدر او اهمیت زیات کړي.

بیا هم طالبانو آواخرو کې پاکستان ته دخپلو استازو د لیږلو امادګي وښودله، نو افغان ولسمشر اشرف غني پښې اړمې کړې او هغه د خلیلزاد په واسطه پاکستان ته چیلنج ورکړ چې که عمران خان له طالبانو سره وکتل نو زه د بلوچ مخالفو ډلو مشران په چورلکه کینوم او له مودي سره یې مخ کوم، طالبانو دا ګمان نه کاوه چې پاکستان به د اشرف غني په چیلنج کې پاتې راشي، خو پاکستان په اخطار کې ښکیل شو او طالبانو ته یې وویل چې دوی دې خپله دوره د څو ورځو لپاره وځنډوي.

د خلیلزاد دا ګومان و چې د اګست په لومړۍ هفته کې د سولې خبرو پرېکړه کیږي،خو کومه نوې لاسته راوړنه ونه شوه، طالبانو د خپل هیواد څخه د ټولو امریکایانو وتلو غوښتنه کوله او زلمي خلیلزاد له دوی څخه په غیر مشروط ډول اوربند غوښته.

دغه وخت د افغان پوځ څو لوړ پوړو چارواکو طالبانو سره رابطه وکړه او طالبانو ته یې وویل چې د سولې تړون لاسلیکېدو وروسته به فوراً له خپلو ځوانانو سره د طالبانو دحمایت اعلان کوي، کله چې اشرف غني په دې خبر شو نو ټرمپ ته یې پیغام ولیږه چې د سولې تړون ستا لپاره توطیه ګر ګرځیدلی شي او ستا کامیابي جوړوي .

د سپتمبر په ۹مه د ډېوېډ په کمپ کې طالبانو او امریکایي چارواکو غوښتل چې د سولې تړون لاسلیک کړي، ترڅو ۱۱ سپتمبر پورې ډونالډ ټرمپ دا دعوه وکولای شي چې افغانستان ته یې امن او سوله راوسته، خو طالبانو د امریکایانو دعوت قبول نه کړ (او امریکا ته له تګ څخه یې انکار وکړ، هغه یې د موافقتنامې ترلاسلیک کېدو پورې مشروط کړل نو ټرمپ هم مذاکرات ودرول).

مخکې ورځو کې ترمپ چې د پاکستان په اړه کومه رویه بدله کړه، اصلي وجه یې دا وه چې دوی په افغانستان کې خپله کامیابي لیدله، خو طالبانو له معاملې کولو ډډه وکړه ، اوس ټرمپ هم په مشکل کې واقع دی او پاکستان هم؛ خو ملا برادر نه پاکستان او نه هم ټرمپ غواړي، هغه د خپل قوم ګټو ته ژمن دی او د هغه چا نه اوري چې بندي یې کړ او غرور یې پرې وکړ.



# ولېږیره خریې؟

**۱- بهانه: پدې وجه چې زوړ معلوم نشم!** ځواب : ډېر عمر د الله تعالی نعمت دی، او د نعمت پټول ناشکري ده او ناشکری حرامه ده، بله دا چې ژوند او مرګ په ږیره او عمر اړه نلري، بلکې په تقدیر الهی پوري اړه لري.

**۲ - بهانه: چې زوړ سم، ږیره پرېږدم!** ښه !آیا ته په خپل ژوند دومره باوري ئې؟ ته څه پوهېږې که دي دا آخیري ساه وه؟ ! خبردار !الموت یاتي بغتة؛ مرګ ناڅاپه راځي .

**۳ - بهانه : خلک استهزاء او ټوکي راپوري کوي که ږیره پرېږدم!** مسلماني یو ښه صفت دی، مسلمان د ټوکو او مسخرو پروانلري، ولې د الله تعالی دا آیات دي نه دي یاد، وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ ) او د هیڅ ملامتوونکي له پرې اچولو څخه ونه وېرېږي).

که څوک خاندي که ژاړي مسلمان باید په دیني چارو کې د چا تر تاثیر لاندي رانسي، او ږیره خریل خو د نصاراوو او یو څو کمزورو مسلمانانو د خوښې کار دی، خو د هغه ذات سره چې زموږ او ستاسي اړیکي دي هغه دا ږیره خوښوي، نو که چیري ږیره پرېښودل د څو جاهلانو په فکر او عقل د شرم سبب وي، نو مسلماني خو هم د ډېرو په نزد د شرم سبب ده نو آیا له اسلام څخه هم باید تېر سو (معاذ الله).




## د بهرنیانو په لومړي افغان کلي

# (ګرین ویلیج) کې څه تیریږی؟

قاضي نجیب الله جامع

په تیرو پنځو کلونو کې دا ځلورم ځل دی چې کابل ښار کې پکتیا کوټ ته څېرمه کابل بای سیمه کې د ګرین ویلیج پر کمپ د طالبانو لخواه خوراه پیچلي او زیان اړونکي بریدونه تر سره کیږي، له دې وړاندې د ۲۰۱۲ په اپریل، د ۲۰۱۳ په اکتوبر او د ۲۰۱۴ د نومبر په ۱۹نیټه هم په ګرین ویلیج بریدونه شوي، ګرین ویلیج لومړنی بهرنی کلی ده، چې ټول اوسېدونکي یې بهرني وګړي جوړوي.

**طالبانو ولې بیا ـ بیا ګرین ویلیج موخه وګرځول؟**

د ۲۰۱۰، ۲۰۱۱ او ۲۰۱۲ کلونو ترمنځ امریکایانو د افغانستان په سهیل (کندهار، هلمند، زابل ارزګان) کې پراخ د افغان وژنې کمپاین لکه هوایي بمبارۍ، چاپې او د افغانانو ځورول، ټکول او وژنې شروع کړې، کوم چې د کابل اداري پخواني ولسمشر کرزی په اصطلاح غوصه یې راوپاروله.

دا داسې مهال وو چې امریکایانو په افغانستان او سیمه کې د خپلو ستراتیژیکو اهدافو د لاسته راوړلو په موخه سوکه ـ سوکه د خپل نظامي شتون په اړوند د تطمیع شوی امریکا پلوه رسنیو او ځینو کسانو له لاري د باور جوړونې او پر افغان ولسمشر ـ کرزي د فشار لپاره د امریکا سفارت او (CIA) د اپراتیفی پیسو په مټ تبلغاتي پروپاګنډه او لابي هم روانه ساتلې وه.

د ۲۰۱۲ کال په اوږدو چې کله د ګران افغانستان په ګوټ ګوټ کې د لسګونو امریکایي اډو او د جاسوسۍ د فعالو مرکزونو د شتون خبره لومړی په ایراني رسنیو کې راپورته او وروسته په کور دننه د خپلواکو مطبوعاتو له لوری وڅارله شوه طالبانو سمدستي د همدی کال په اپریل میاشت کې د امریکایانو دغه پټ په ظاهره سیاسي ولي خطرناک او له پیچلو دسیسو ډک کمپ چې په اصل کې د (CIA) او بلک واټر لخوا د پټو او مهمو اطلاعاتي ـ عملیاتي موخو لپاره کاریږی تر خپل برید لاندې راوست او همدا جریان تر ننه نږدی ځلور ځله تکرار هم شو هغه چې د دغې سیمې په څو کیلومیټری کې د خلکو له پرلپسې ـ اعتراضونو او نیوکو سره سره افغان حکومت د هغو د بندولو څه چې حتا د دې اډې یا په اصطلاح کمپ څخه عادي معلومات هم نه لري.

**ـ ګرین ویلیج، د سي ای اې او بلک واټر پټ اطلاعاتي ـ عملیاتي مرکز.**

په ۲۰۰۴ کال د فیبروري په میاشت کې چې کله د ولسمشر غني د ټیم اوسني لومړي مرستیال امرالله صالح د افغان ملي امنیت د مشر په توګه وټاکل شو نو د اس ریاست د کتاب لیکوال ستیو کول په خبره نومورې وتوانیدو چې د افغان ملي امنیت اداری او (سیا) ترمنځ استخباراتي اړیکي پراخي او د

هغوی د جاسوسي لسگونه او سلگونه مرکزونو پرانیستو ته زمینه برابره کړې هغه چې (سیا) د ایرانی ایسنا په خبره د کابل ــ اریانا ستیشن وروسته ۲ نورې د جاسوسي او تخریب نمایندگۍ پرانیسي چې د گرین ویلیج کلي یې یو له دغو دوو څخه وو.

وروسته بلک واټر کمپنۍ چې د امریکا د دفاع وزارت په چوکاټ کې د کرایي جگړو یو له وحشت کارو قراردادیانو څخه ده، ډېر ژر په گرین ویلیج کې د مرکزی او سهیلۍ اسیا په نوم څیړنېز مرکز پرانېست کوم چې د اسرف غني د نژدې پلویانو څخه د یوه تن د کورنۍ غړې یوه مېرمن یې مسوولوله او دوه تنه نور چې یو یې د لغمان ولایت څخه دی د افغـاني الاصله امریکـایي اتباعو په توگه چارسمبالي وگمارل شول.

ځکه یې هم دغې سیمې ته انگریزي نوم ورکړل شوی چې زیاتره اوسیدونکي یې هغه خارجیان دي چې په پوځي، ملکي، استخباراتي او نورو برخو کې یا مستقیماً د (CIA) د یادی اډې غړي، یا د بلک واټر افغان او بهرني همکاران، یا د امریکا د نږدی ملگرو لویدېځو هیوادونو د سیاسي نمایندگیو هغه استازي میشت دي چې دغه اډې (کمپ) ته مهمو ناستو ته بلل کېږي.

بل لور ته د دغسي استخباراتي ادارو ټوله راشه درشه لکه د (CIA) د نورو پټو مرکزونو او افغاني ملېشاوو چې د خوست ساتونکی ځواک یا KFC یې ښکاره بېلگه ده د همدغو بهرنیانو په ویټامینو د راستر شویو او دویته ژمنو بنستونو سره ده چې په سیوري کې ځواک ورته ویلی شو.

افغان حکومت د دغه اډو او کمپونو نه خبر نه ده بیا هم که خبر وي یا خبر شي د دې واک نه لري چې حتا د دغه د جاسوسۍ د ځالو خواته په چپه هم ور وگورې دا خو پرېږده چې هلته دې د څه تېریدلو او ولې احوال ولري.

زه خپله یو ځلی د دې سیمې خوا ته چې د یو ملگري په کور کې میلمانه وو له یو لوړ رتبه افغان چارواکي سره تللی وم، هغه چې خورا امنیتي حساسیتونه مو ولیدل کوم چې له امله دې سیمې ته نږدې هم عام خلک نه پرېښودل کېږي او دا یوه سوچه پوځي سیمه ده.

دغسي په ولسي سیمو کې د لویو استخباراتي اډو جوړول ښيي چې زموږ له مالوماتو زیات هم دلته ډېر نور څه شته او شاید امریکا او متحدین یې دیته ورته په لسگونو نوري اډې هم د کمپونو، موسسو او مختلفو عنوانو لاندې ولري.

د بېلگې په توگه وړمه شپه د افغان سولې په برخه کې د امریکا سیاسي استازي زلمي خلیلزاد کابل کې له یوه خصوصي تلویزیون سره په مرکه کې وویل چې د طالبانو سره د هوکړې پر بنسټ به دوی خپلې ۵ اډې وتړي هغه چې د ژورنالیسټ د بیا بیا ټینگار سربیره هم د دغو پټو اډو ادرس ښاغلي خلیلزاد افشا نه کړ او دا د امریکا د شتون او د دغې جگړې د ژوروالي پر مانا ده.

اوس کابل اداره د پیښې د غندلو او د غچ اخیستلو پرځای باید له افغان ولس څخه په پردو او تیارو کې پټ کړې د پردیو د وحشت کاریو د شبکو اړوند ښښه وغواړي، دغه شبکې رسوا او هغه کورني عاملین چې د پردیو د جاسوسیو نمایندگیو ته یې د وحشت او افغان وژنې جوازونه ورکړې عدالت ته راوکاږي.

کنه له تشو غندنو او د افغانانو څخه له غچ اخیستو نه یوازې څه نه جوړیږی بلکې دا عملا له خپل ولس سره خیانت او د همدغه مصوونو او په شنو کلیو کې میشتو پراډیانو، اجرتي قاتلانو او جاسوسي شبکو سره همکاري او توجیه یې ده

(فردی نزد حکیمی آمد و گفت:
خبر داری فلانی دربارهات چه قدر غیبت و بدگویی کرده؟
حکیم با تبسم گفت:
او تیری را بهسویم پرتاب کرد که به من نرسید. تو چرا آن تیر را از زمین برداشتی و در قلبم فرو کردی؟
هرگز سبب ناقل کینهها و دشمنیها نباشیم بلکه ناقل محبت و همدلی به یکدیگر باشیم!)




# ته سوله څه کوې!؟

لیکوال: بشیراحمد الحنفي

نه تر اوسه وږل سوی یې، نه تر اوسه ژوبل سوی یې.

نه دې ورور وږل سوی، نه دې ماما ژوبل سوی.

ټول عمر دې د سفارتونو، موسسو معاشونه وخوړل، ښه لوکس موټر لرې، ښایسته دریشي دې په تن ده.

د دفتر هینداري دې ضد مرمۍ دي، فوق العاده ګاردان لري، چې د دفتره بیرون سي نوري زرې موټري دې په خدمت کې دي، کله چې په بازار کې روان یې پولیس، ترافیک دې په خدمت کې دي، ټولي لاري ستا پرمخ خلاصي دي، خو د ولس پرمخ بند دي.

کله چې کور ته ورسیږې، ټول کور دې چار دیوالي دی، نه مرمۍ وربانـدي تـاثیر کـوي، نه انفجار، ستا د کور لاري کوڅې د ټول ملت پر مخ بندي دي. پنځه سړک مخکې ستا نظام قرولونه برملا ښکاري.

ماښامنۍ ډوډۍ دې په کانټینټل او پنځه ستورو هوټل کې ده.

په جیب کې دې دوه تابعته دي، یوه پښه دې د پنجشنبې په ورځ په دوبۍ کې ده، جمعې ورځ دې امریکا کې ده.

د اونۍ نوري ورځې دې، کله په دفتر کې دې، کله د امریکا د سفیر سره په سفارت کې.

ماشومان دې پـه بهرنیو فـوق العاده مکتبنو، پوهنتنو کې درس وایې، کورونه، مزدوران، موټران د دوی په خدمت کې دي. پیسې د دې ملت د جیب ور رواني دي.

ستا اولادونو په ټوله ژوند یې ټک ندی اورېدلی.

ته چې کله مریض سې یوه پښه دې تر هندوستان ده، بله دې تر امریکا ده.

ستا تر دفتر تګ په شلو واسطو ممکن ندی که دې طبیعت وو، عریضه به امضا کړې، کنې د عارض پر مخ یې ورغورځوې.

ته سوله څه کوې؟

په یوه بانک کې دې د ډالرو اکاونټ خلاص دی، په بل کې دې د افغانیو خلاص دی.

یو کور افغانستان کې لرې، بل په دوبۍ کې. اروپا خو هسې هم ستا کور ده.

ته سوله څه کوې؟

زرګونه ډالر معاش د دولت خورې، قرادادونه دې په خپل نوم دي، امکانات دې د ولس په هغو پیسو درته اخیستل سوي چې په سختو ګرمیو او یخ کې یې د لاس په تناکو ګټلي، او دولت ته یې د ټیکس او محصول په نوم ورکړي،

خو جیب ته ستا مفتي ولیږي.

ته سوله څه کوې؟

رشوت درته رسیږي، شراب، کباب دي په خدمت کې دي، سکرتره دې پیغله انجلۍ ده.

سوله خو زه غواړم چې:

د ماښام ډوډۍ لرم، سهار په نهاره کارته وځم، ترڅو دابل ماښام ته یوه ګوله ډوډۍ پیداکړم.

بچې مې پر سړکانو پلستیکونه کاغذونه ټولوي او خپل مور ته یې راوړي ترڅو چاي، ډوډۍ په پخه کړي.

مکتب، مدرسې ته د غریبۍ څخه نسي تلای، یاخو یې وس نلرو او یا راپسې نور هلکان ملنډې وهي وایي دا غریب دی.

ترڅو چې ماښام کورته راځم د مور، پلار او ښځې په زړه مې یو رب خبر دی چې ژوندی به راسم، که به کوم انفجار یا بمبار کې له منځه تللی یم.

په اونۍ کې پنځه ورځې کار ته وځم، کله کار راته پیداسي، کله تر

ماښامه د مزدورانو سره پر پلکې ناست يم
د زړه په حال مې يو رب خبر وي

دجمعې په ورځ د خپل ورور، تره، ماما، کاکا پر زيارتونو ګرځم.

خلک اخترونه د خوشحالۍ سره لمانځي مونږ ډوډۍ د اوښکو سره خورو.

د ژوند هيڅ امکانات راته ميسر ندي.

پر کور مې وحشي جابر، ظالم چاپه راووهې د کور غړي مې زما په مخ کې په ګوليو سوري سوري کړي.

عزت، او پت او ناموس ته مې لاس واچوي، زه لاس تړلی بې وسه ورته ګورم.

ماښومان مې د الوتکو د ږغ تر سهاره ژاړي.

د وخت حاکم بيا بيل جبر او ظلم راسره کوي، غاصب، قاتل خپل دبدبه راباندې کوي.

سوله خو زه غواړم چې:

هره ورځ جنازې پورته کوم، مسجدونه مې د فاتحو د خلکو څخه نه خالي کيږي، د هر کور کمبلي مې په وينو سرې ده.

ډله ډله يتيمان راباندې چاپير دي او راته ژاړي د خپل پلار جان او ورور جان فريادونه راته کوي، زه بې وسه ورته ګورم، غمونو مې پر زړه داغونه کښلي، تکې تنها يم بېله خپل رب بله چاره نلرم، پدې نيت ناست يم چې نن يا سبا به د بدلون لمر راباندې راوخيژي.

په جګړه کې بګيل امريکايان په سياست کې هم بګيل سول:

– يقين او ايمان لرو چې د هرې زمانې فرعون او طاغوت به ذليله کيږي.

– د امريکايانو د مذاکراتو څخه پر شا کيدل هيڅ د تعجب خبره نه ده، ځکه چې کافر د الله تعالي پر ژمنه نه دي ولاړ، نو زه اوته څوک يو.

– د امريکايانو غدارې، تکبر او جګړيز ذهنيت، نور د خپلې امپراتورۍ دپاره تابوت جوړول دي.

– داسې پيښې او واقعات يو الهي امتحان دي اشخاص او دريځونه په ډاګه کوي او صفونه تصفيه کوي.

– د امريکايانو سره په مذاکراتو کې د الله تعالی په دي حکم چې:

وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ.

عمل وسو او پر ټولو بهانه ودريدل.

– د امريکايانو ايستل د ټولو افغانانو او ددې هيواد د فرد فرد ديني مسئوليت دي، نو هيڅوک دی چاته پيغور او طعنه نه ور کوي دلته ددوي په پاته کيدلو کې به ملاتيا ټولو ته متوجه وي.

دا خاوره زموږ ده او زموږ به وي او اشغالګر به حتما يوه ورځ ذليله ورزي.

## ذهني فشار!

نن ورځ په ټوله نړۍ کې ذهني فشار يوه عامه ناروغي باندې بدله سوي ده، ذهني فشار کې خفګان وي، نفس او زړه تنګيږي خو موږ خينې لارو چارو څخه کار اخلو تر څو ذهني فشار کم کړو چې عبارت دي له : لږ خواږه خوړل مثلاً ايسکريم.

**د ځای پاکوالی** : که خونه يا د اوسيدو ځای مو چټل يا ګډ وډ وي دې سره هم ذهني فشار رامنځته کيږي نو بايد پاک او منظم ځای ولرو.

**په زينو چابک ختل** :دې ستريا رامنځ ته کيږي چې په نتيجه کې زيات اکسيجن اخلو او اکسيجن اخيستل ذهني فشار کمولو کې مرسته کوي.

**د سر مساج او ويښتان ږمنځول** :د سر مساجول او ږمنځول هم وينې ته چابکوالی ورکوي چې په نتيجه کې مو دماغ ارام کيږي.

**خطاطي او انځورګري** :خطاطي انسان دماغو ته ارام ورکوي ذهني فشار کموي انسان ته خوشالي ورکوي همدا شان انځور ګري هم ذهني فشار کموي.

**په تازه اوبو لمبيدل او عطر وهل** :په تازه اوبو لمبيدل او د ښه بوي لرونکي عطر استعمالول مو هم اعصاب اراموي.

**ښه يادونه تکرارول** :د ذهني فشار له منځه وړلو لپاره خپل ملګري سره پخواني ښه يادونه تکرارول او پر هغې خندا کول ګټور ثابتيږي نه داسې خندا چې بيپلا کش ورکو تر سهاره خاندو بايد لږ وخاندو، ځکه چې لږه خندا مو زړه ژوندی کوي او له ذهني فشار او نفس تنګی مو خلاصوي.

# د کېمپ ډېوېډ ملاقات

## او که استخباراتي دام او لوبه

((ابراهیم محسن))

په قطر کې د اسلامي امارت د سیاسي دفتر او د زلمي خلیلزاد په مشرۍ د امریکایي مذاکراتي ټیم سره د نهه(۹) پړاوه پرله پسې خبرو په نتیجه کې د امریکایانو او طالبانو ترمنځ توافقنامه نهایي شوه. له نهایي کېدو سره سم، پر دې باندې کار شروع شو، چې اوس څنګه او چېرته یادې توافقنامې ته عملي جنبه ورکړل شي او په کوم هېواد کې د یو لړ خاصو مراسمو په ترڅ کې امضاء کړای شي.

د همدې هلو ځلو په ترڅ زلمی خلیلزاد له قطر هېواد څخه کابل ته په سفر راغی، چې د سفر په ترڅ کې یې یاده توافقنامه د کابل اداري مشرانو ته وښوده او د توافقنامې په اړه یې د کابل اداري یادو مشرانو ته معلومات ورکړه.

په کابل کې د څو ورځو له تېرېدو څخه وروسته زلمی خلیلزاد د سکاټ مېلر په ملتیا قطر هېواد ته ستون شو او هلته یې یو ځلې بیا د طالبانو د سیاسي دفتر له غړو سره مجلسونه شروع کړه، چې په همدې جریان کې د اسلامي امارت د قطر د مذاکراتي ټیم غړي او د سیاسي دفتر ویاند شهیل شاهین هم په خپله ټوېټر پاڼه باندې ولیکل کې، چې: ((پرون مو له امریکایي لوري سره د شپې تر دوه نیمو بجو پورې مذاکراتي مجلس درلود او نن ماښام محترم ملا برادر اخند او ورسره هیئت یې له ډاکټر زلمي خلیلزاد، جنرال مېلر او د قطر د بهرنیو چارو له وزیر سره ګډ مجلس درلود، دواړه مجلسونه مثبت و او ښه پرمختګ وشو.))

په قطر کې د طالب سیاسي مشرانو سره له دوه ورځنیو لیدنو او مجلسونو څخه وروسته، رسنیو راپورونه ورکړل، چې د افغانستان د سولې د مذاکراتو لپاره د امریکا خاص استازی زلمی خلیلزاد، په قطر کې له طالب مشرانو سره د دوه ورځنیو لیدنو وروسته نن(شنبه، ۱۲ سنبله) له دوحې څخه د واشنګټن په لور روان شو.

په دې جریان کې په یو ناڅاپي ډول د امریکا جمهور رئیس (ډونلډ ټرمپ) په خپله ټوېټر پاڼه باندې په پرله پسې ډول درې ټویټونه وکړل، چې د همدغو ټویټونو په ترڅ کې یې له طالبانو سره مذاکرات لغوه اعلان کړل. د مذاکراتو لغوه کولو لامل یې په ظاهره دا وښوده، چې په کابل کې د طالبانو په وروستی حمله کې زمونږ یو ډېر زړور عسکر ووژل شو او یوولس نور ټپیان شول.

هغه په خپل ټویټ کې لیکلي، چې: ((هېڅوک په دې نه وو خبر، چې د یکشنبې په ورځ به د طالبانو د مهمو مشرانو او د افغانستان له جمهور رئیس سره په جلا جلا ډول په کېمپ ډېوېډ کې په مخفي ډول ملاقاتونه وکړي. هغوی باید نن شپه امریکا ته راغلي وای، خو له بده مرغه، طالبانو د خپل کاذب قدرت د ښودلو لپاره دا ومنله چې هغوی په کابل کې حمله وکړه او زمونږ یو زړور عسکر او یوولس تنه نور یې ووژل.))

هغه همدا راز په خپلو ټویټونو کې نورې څرګندونې هم کړې دي، خو له هغو څخه تېرېږو او اصلي موضوع ته راځو، چې آیا په واقعیت کې هم ټرمپ په کابل کې د وروستیو بریدونو له امله طالبانو سره مذاکرات لغوه اعلان کړه او که نه حقیقت بل څه وو، چې له امله یې مذاکرات لغوه اعلان کړای شوو.

د ډونلډ ټرمپ له ټویټونو او د رسنیو او میډیاګانو د معلوماتو له مخې داسې ټاکل شوې وه، چې د شنبې په ورځ به اشرف غني واشنګټن ته رسېږي. همدارنګه لکه څنګه چې پورته یادونه وشوه د شنبې په ورځ، زلمی خلیلزاد هم له دوحې څخه د واشنګټن په لوري روان شوی و. د دې ترڅنګ تمه کېده چې طالب مشران به هم په کېمپ ډېوډ کې له ډونلډ ټرمپ سره په جلا جلا ډول ملاقاتونه ترسره کړي، خو په دې هر څه باندې هغه وخت د بطلان کرښه راکاږل شوه، چې کله طالب مشرانو په قطر کې زلمي خلیلزاد ته، د توافقنامې له امضاء څخه دمخه د یاد ملاقات څخه انکار وکړ او له دې سره هم مهاله په (۱۵ د سنبلې، د جمعې) په ورځ لومړی په رسنیو کې د اشرف غني واشنګټن ته د سفر د ځنډېدو خبرونه خپاره شول، چې په کې ویل شوي وو: ((ټاکل شوې وه، چې د ګډ حکومت مشر اشرف غني د دیارلس کسیز پلاوي په مشرۍ سبا (شنبه، ۱۲ د سنبلې) د امریکایي ولسمشر ډونلډ ټرمپ د لیدو لپاره واشنګټن ته روان شي، خو سرچینې وایي، د نوموړي سفر له خنډ او ځنډ سره مخ شوی دی. د ګډ حکومت د کابینې یوه وزیر د نوم نه څرګندولو په شرط آزادۍ راډیو ته ویلي، اشرف غني له طالبانو سره د سولې په اړه د بحث لپاره غوښتل امریکا ته سفر وکړي، خو د سفر په اجنډا کې د اختلاف له امله سپینې ماڼۍ واشنګټن ته د اشرف غني سفر وځنډاو...))

که چېرې واقعاً هم ډونلډ ټرمپ یاد مذاکرات په کابل کې د وروستیو حملو له امله لغوه اعلان کړي وای، نو حملې خو پر ۱۳ او ۱۴ یعنې د چهارشنبې او پنجشنې په ورځو وشوې او د مذاکراتو د لغوه کولو په موخه ټویټونه په ۱۲ د سنبلې، یعنې د شنبې په ورځ وشول، چې په دې منځ کې د وخت ډېر لوی واټن تر سترګو کېږي، بلکې په کار خو دا وه، چې یاد ټویټونه سمدلاسه د حملو وروسته شوي وای، نه په دومره ځنډ سره؟!

زما په ګومان په حقیقت کې د مذاکراتو د لغوه کولو لپاره په دومره ځنډ سره د ټویټونو کولو اصلي لامل دا کېدای شي، چې کله امریکایان پر دې پوه شول، چې اوس طالب مشران امریکا ته نه راځي، نو د سي. آی. اې. په اشاره ډونلډ ټرمپ سمدلاسه د مذاکراتو د لغوه کولو په موخه ټویټونه کوي او یاد مذاکرات په شکل د اشکالو لغوه اعلانوي.

بله دا چې که څه هم طالبانو په خپله اعلامیه کې ورته هم اشاره کړې وه، چې د توافقنامې تر لاسلیک مخکې په یوه برید عکس العمل ښودل نه د حوصلې او نه هم د کومې تجربې ښودنه کوي او دا واقعیت هم دی، چې په دومره اوږده جګړه کې، چې تقریباً څه کم نولس (۱۹) کاله یې په بر کې ونیول، په زرګونو امریکایي عسکر او قراردادیان په کې له منځه ولاړل اوس د یوه عسکر په وژل کېدو دومره سخت عکس العمل ښودل، چې په نتیجه کې یې هغه مذاکرات چې د اتلس کلنې جګړې د ختمولو په موخه یې په مسلسل ډول تقریباً یو کال یې په بر کې ونیو، لغوه اعلانول، معقولیت نه بلکې حماقت دی!!

نو له دې څخه ښکاره او واضحه معلومېږي، چې د ډونلډ ټرمپ له خوا د طالبانو سره د مذاکراتو لغوه کول په کابل کې د وروستیو حملو له امله نه وو، بلکې د طالبانو له خوا د ډونلډ ټرمپ د هغې غوښتنې، د نه منلو او د توافقنامې د امضاء کولو سره د مقید کولو له امله وو، چې د زلمي خلیلزاد له طریقه یې په قطر کې د طالب مشرانو څخه په کېمپ ډېوډ کې د ملاقات غوښتنه کړې وه. که څه هم په قطر کې د طالبانو د مذاکراتي ټیم غړي او ویاند سهیل شاهین په خپلو خبرو کې وویلې، چې مونږ د ډونلډ ټرمپ سره د ملاقات غوښتنه، چې د زلمي خلیلزاد له طریقه مونږ ته راکړل شوې وه، مونږ ومنله، خو مونږ زلمي خلیلزاد ته وویلې، چې دا کار به د توافقنامې له امضاء څخه وروسته په مناسب وخت کې وکړو.

اوس راځو دې ته چې امریکایانو ولې غوښتل، چې طالب مشران په کېمپ ډېوېډ کې په شکل د اشکالو په پټه د ډونلډ ټرمپ سره وګوري؟!

-لومړی: دا طرحه د چا له خوا، ولې او د کومو موخو او اهدافو لپاره رامنځته شوې وه؟

-دویم: څه لامل شو، چې طالب مشران په دې چال کې راګېر او بدنام نه شول؟

لومړی راځو دې ته، چې دا طرحه د چا له خوا، ولې او د کومو موخو او اهدافو لپاره رامنځته شوې وه؟

په سیاسي او مذاکراتي لحاظ د امریکا تاریخ په دروغو، دهوکو، فریبونو، چالاکیو، مکاریو او له وعدو او تفاهم نامو څخه پر تېښتو او شاتګو باندې ولاړ دی، چې ښکاره بېلګې یې په دې وروستیو کلونو کې د شمالي کوریا او ایران سره د مذاکراتو او معاهداتو څخه تېښته ده.

دا چې د پردې تر شا د امریکا سیاست او پالیسي په مکمل ډول د سي. آی. اې په اختیار کې ده او د سي. آی. اې له خوا په مستقیم ډول په پټه پر مخ وړل کېږي، نو ویلای شو، چې طالب مشرانو ته په کېمپ ډېوېډ کې د ډونلډ ټرمپ سره په پټه د ملاقات بلنه په حقیقت کې د سي. آی. اې له خوا جوړ کړې چال او دام و!!

په پټه ملاقات ورته ځکه وایو، چې په لومړي ځل دا خبره د ډونلډ ټرمپ په ټویټ کې راښکاره شوه. نه په رسنیو کې داسې څه ویل شوي او راغلي وو او نه هم په رسمي ډول د طالبانو او امریکایانو له خوا مطبوعاتو ته څه ویل شوي وو، بلکې ډونلډ ټرمپ په خپل ټویټ کې وویلې، چې: ((هېڅوک په دې نه وو خبر، چې د یکشنبې په ورځ به د طالبانو د مهمو مشرانو او د افغانستان له جمهور رئیس سره په جلا جلا ډول په کېمپ ډېوېډ کې په مخفي ډول ملاقاتونه وکړي. هغوی باید نن شپه امریکا ته راغلي وای...))

که څه هم پر دې به وروسته رڼا واچوو، چې د طالب مشرانو سره د الله تعالی د نصرت ترڅنګ، د دوی قوي سیاسي بصیرت او محتاط کاري ملګرې وه، چې په کېمپ ډېوېډ کې یې په پټه د ډونلډ له ملاقات څخه په شکل د اشکالو انکار وکړ.

که څه هم د ډونلډ ټرمپ په ټویټونو او د طالبانو په اعلامیه کې د ډونلډ ټرمپ سره یوازې د ملاقات خبره راغلې وه، خو په رسنیو کې داسې آوازې هم خپرې شوې وې، چې کېدای شي لومړی د اشرف غني سره یوه مشترکه اعلامیه امضاء او نشر شي او ورپسې د طالبانو سره توافقنامه امضاء شي، چې دا کار په دواړو صورتونو کې د مجاهدینو، ولس او اسلامي امت پر وړاندې د طالبانو د ملامتۍ او بدنامۍ باعث کرځېده.

هغه ځکه چې طالبانو نه یوازې د افغانستان د ملت په زړونو کې ځای پیدا کړی دی، بلکې د ګردې اسلامي نړۍ د امت زړونو ته یې لار موندلې ده. په نړۍ کې د اسلامي او جهادي حرکتونو په منځ کې د اسلامي امت سترګې اوس یوازې او یوازې طالبانو ته دي، چې د دې ښکاره بېلګې، لومړی د افغان ولس له طالبانو سره اوږه په اوږه ودرېده او ورسره په هر ډول قربانیو کې ملګري کېدل دي. شپه، ډوډۍ، بستره، مالي، مادي او داسې نور امکانات ورکول او د طالبانو لیکې او صفونه په خپلو اولادونو قوي کول پر دې دلالت کوي، چې ملت له طالبانو سره ولاړ دی.

همدارنګه که په بهر کې مونږ د طالب مشرانو وروستیو دوه سفرونو ته نظر واچوو، چې یو یې د اسلامي هېواد اندونیزیا او بل یې د اسلامي هېواد ازبکستان دی، د اسلامي هېوادونو په دغو دواړو سفرونو کې نه یوازې په دولتي سطحه د طالب مشرانو ستره پذیرایي وشوه، بلکې د دواړو اسلامي هېوادونو ولسونو ورته هم قدر او ناز ورکړ. دا چې حالات او شرایط برابر نه دي، نو د نورې اسلامي نړۍ ولسونه په ظاهره توګه څه نه شي اظهارولای، خو په غیر مستقیم ډول د طالبانو سره خوا خوږي لري.

خطرناکه خبره دا ده، که چېرې طالب مشرانو، لکه څنګه چې د امریکایانو له خوا طرحه جوړه شوې وه، په هر

شکل د توافقنامې د امضاء څخه مخکې په شکل د اشکالو په پټه امریکا ته سفر کړی وای، نو سي. آی. اې سمدلاسه یاد مجلس او ملاقات سره د اسنادو او تصویرونو په غیر مستقیم ډول افشا او رسوا کاوه او د افغانستان ملت او اسلامي امت ته یې طالبان معامله ګر، استخباراتي ډله او واک ته جنګېدونکي خلک وغیره معرفي کول، چې دې کار به په تاریخي لحاظ طالبانو ته په افغان ولس او اسلامي امت کې ډېره سخته او نه جبرانېدونکې بدنامي اړولې وای، خو لله الحمد، چې داسې ونه شول، ځکه چې طالب مشران د الله سبحانهُ وتعالی په نصرت دې هر څه ته متوجه او بیدار وو.

اوس پوښتنه دا ده، چې آیا د داسې څه کېدو احتمال وو، یا داسې څه کېدونکي وو؟!

ځواب دا دی، چې هو !دا هر څه ځکه کېدونکي وو، چې امریکایان د دسیسو په جوړولو او د طالبانو په څېر د یوه سپېڅلې حرکت او نظام، چې قربانیو یې نړیوال حېران کړي دي، په ناحقه بدنامولو کې تاریخي تجربه لري. همدارنګه باید وویل شي، چې خپله امریکایانو په خپلو بېلا بېلو استخباراتي لیکنو او کتابونو کې د داسې مسایلو څخه پردې پورته کړې دي. حتی په اوس وخت کې داسې آوازې او کنګوسې هم شته، چې د اتیایمو کلونو څخه را په دېخوا تر دې اوس مهاله (۲۰۱۲م.) کلونو پورې یې د مختلفو افغاني ډلو ټپلو پر مشرانو باندې یې دغسې تجربې عملي کړي او اسناد یې ورباندې جوړ کړي دي، چې اوس یې ورباندې د فشار د آلې په توګه استعمالوي.

بله دا لکه څنګه چې ورته پورته اشاره وشوه، لومړی که په کېمپ ډېوېډ کې د اشرف غني سره د امریکايي ځواکونو د وتلو جعلي او ساختګي موافقه شوې وای او وروسته بیا اعلامیه امضاء او نشر شوې وای. همدارنګه له دې څخه وروسته له طالب مشرانو سره د نهه پړاوه مذاکراتو په نتیجه کې نهایي شوې توافقنامه په همدې ورځ په کېمپ ډېوېډ کې امضاء شوې او اعلان شوې وای،

نو دې کار به هم د مجاهدینو او افغان ولس پر وړاندې طالبان ډېر سخت بدنام کړي او ملامته کړي وای، ځکه چې دلته امریکایانو دا چالاکي کوله، چې مونږ له افغانستان څخه خپل عسکر د افغان حکومت د مشرانو سره د موافقې په نتیجه کې وباسو، نه د طالبانو سره د توافقنامې د امضاء کولو په نتیجه کې، نو ځانونو ته یې د روسانو په څېر د اوږو پوزه اېښودل مطلب وو.

کله چې روسان پر دې پوه شول، چې نور په افغانستان کې له ماتې سره مخ دي، نو له ډاکټر نجیب سره یې د افغانستان څخه د وتلو لپاره جعلي طرحه جوړه کړه او له افغانستان څخه ووتل، چې اوس هم دا خبره ډېره اورېدل کېږي چې روسان له افغانستان څخه ډاکټر نجیب وویستل، حالانکې چې روسان له افغانستان څخه د افغانانو د قربانیو او سرښندنو په نتیجه کې له شرمېدونکې ماتې سره مخ شول او بیا ووتل.

لکه څنګه چې یادونه وشوه امریکا هم اوس غواړي چې، ځان ته د وړو پوزه کېږدي، افغانانو او دنیاوالو ته وښايي، چې مونږ له افغانستان څخه د افغانستان د منتخب حکومت د مشرانو سره د موافقې په نتیجه کې له افغانستان څخه وځو. اګر چې حقیقت دا دی، چې امریکایان به له افغانستان څخه د افغانانو د بې دریغه سترپاوو، شکنجو، زندانونو، قربانیو او شهادتونو په نتیجه کې له افغانستان څخه وځي، ان شاءالله

خو زما په ګومان د کابل ادارې سره د اعلامیې د امضاء کولو او نشرولو څخه په حقیقت کې د امریکایانو اصلي هدف دا وو، چې د طالبانو سره کړې توافقنامه بې اهمیته او په شکل د اشکالو ورته ځان پابند نه کړي او له افغانستان څخه د خپلو ځواکونو د وتلو اختیار په یو ډول په خپل لاس کې واخلي.

اوس راځو دې ته، چې څه لامل شو، چې طالب مشران په دې دام کې راګېر او په دې لوبه کې بدنام نه شول؟

لومړی دا چې د هر څه دمخه دا د الله تبارک وتعالی خاص نصرت او رحم و، لکه څنګه چې الله تعالی په نظامي ډګر کې امریکا او متحدین یې طالبانو ته مات کړي دي، همداسې الله تعالی په سیاسي ډګر کې هم دوی د شرمېدونکې ماتې سره مخ کړه، چې د مذاکراتو لغوه کول یې لومړۍ مرحله وه. په سیاسي ډګر کې د نظامي ډګر په څېر د طالبانو رهنمایي او ساتنه یوازې او یوازې د الله تعالی نصرت کېدای شي او بس. کنه چېرته د امریکا شیطان فکره ډېپلوماتان او ورسره د سي. آی. اې. غرې او چېرته په کلونو کلونو زندانونو او شکنجو خوړلي او ځورېدلي طالب مشران؟!

دویم دا چې د اسلامي امارت سیاست، پالیسي او کړنلاره په اسلامي اصولو او په حقیقي افغاني دود او دوستور ولاړه ده، نو طالب مشرانو ته به خپل ایماني او افغاني غیرت اجازه نه وي ورکړې، چې له وخت او فیصلې څخه مخکې په یوه مجهول او ګونګ حالت کې د اسلام او مسلمانانو له دښمن سره تشریفاتي، نمایشي او غولوونکې ملاقات وکړي.

درېیم دا چې طالبان د واحد دریځ، یوې خبرې او په خپلو خبرو ولاړ خلک دي، نو طالبانو دا درک کړې وه، چې په کېمپ ډېوېډ کې امریکایان له دوی څخه داسې غوښتنې لري او داسې څه ورباندې کول غواړي، چې دوی یې په هېڅ صورت منلو ته تیار نه دي. د دې خبرې د ثبوت لپاره نیویارک ټایم هم په خپل راپور کې د یوه طالب چارواکي له قوله ویلي وو، چې مونږ یو ځلې له امریکایانو سره خپله توافقنامه امضاء کړې وای، نو مونږ بین الافغاني خبرو ته د کېناستو وعده کړې وه، چې دا خبره د طالبانو په اعلامیه کې هم راغلې وه، چې ۲۳ د سنبلې د بین الافغاني مذاکراتو نېټه اېښودل شوې وه. همدارنګه یاد طالب چارواکي نیویارک ټایم ته زیاته کړه، چې که د ډونلډ ټرمپ او د ده د حکومتي چارواکو دا خیال وي، چې دوی به د افغان حکومت او طالبانو ترمنځ راروانه ترېګنې

واشنګټن ته زمونږ په بوتلو ختمه کړي، نو دا ممکنه نه ده، ځکه چې مونږ د کابل ګوډاګې حکومت بالکل په رسمیت نه پېژنو، نو ویلای شو، چې دا یې بل لامل وو.

کېدای شي دې ته ورته څه نور وجوهات هم ولري، خو دا زما آند او فکر و.

د اسلامي امارت د یوه کشر خادم په حیث زما خپلو مشرانو ته دا مشوره ده، چې کله هم په مذاکراتو او د نورو مجلسونو او ناستو ولاړو په جریان کې که امریکایان درته نرمې وعدې، دعوتونه او بلنې درکوي، باید ورته ښه متوجه شئ، چې تر شاه خو به یې کومه استخباراتي لوبه او دام نه وي اېښې، ځکه امریکایان د خپلو اهدافو او موخو د لاس ته راوړلو لپاره په هېڅ عمل او کړنه صرفه نه کوي.

همدارنګه امریکایان، چې څومره ما مطالعه کړي دي، ډېر مکار، چالاک، بې لوظه، بې عهده او له وعدو او خبرو څخه تښتېدونکي خلک دي. امریکایان به لکه څنګه چې په نظامي ډګر کې یې د جګړې لپاره ډېرې پالیسۍ بدلې رابدلې کړې او په همدې موخه یې د اتلسو کلونو په اوږدو کې په نظامي ډګر کې د طالبانو د ماتولو لپاره مختلفې لارې چارې اختیار کړې، خو، دا چې د طالبانو سره د الله تعالی نصرت ملګری و، نتیجه یې ورنه کړه، نو همداسې به اوس د یوې مودې لپاره په سیاسي ډګر کې هم بېلا بېلا تجربې کوي او دا هر څه به تر هغې کوي، لکه څنګه چې په نظامي ډګر کې پر دې پوه شول، چې طالبان نه ماتېږي، نو د مذاکراتو لار یې ونیوله.

زه خپلو مشرانو، مجاهدینو او افغان ولس ته په ډاډ سره ویلای شم، چې کله امریکایان پر دې هم پوه شي، چې په سیاسي ډګر کې هم طالبان نه غولېږي، نه غلطېږي او نه هم ماتېږي، نو په خپله به یو ځلې بیا د مذاکراتو لار نیسي او په افغانستان کې به هغه جګړه، چې تقریباً دوه لسیزې یې په بر کې نیولې دي، د مذاکراتو له لارې ختمه اعلانوي، ان شاءالله.

وما ذلک علی الله بعزیز

# جهان چگونه به امریکا وابسته شد!

(ترجمه)

امریکا با قدرت واقعیِ خود، ابرقدرت واقعی جهان دانسته می‌شود. این تنها کشور ابرقدرتی در تاریخ بوده که این چنین قدرتی را به‌دست آورده است. در مقایسه با امپراتوری‌های فارس و روم، می‌توان گفت که آن‌ها تنها منحیث قدرت‌های منطقه‌ای شناخته می‌شدند، نه ابرقدرت؛ حتی دولت خلافت یک قدرت منطقه‌ای بود. اکنون تسلط امریکایی، جهان را کنترل نموده و به پیش می‌راند؛ فقط به آن مصروف نبوده؛ بلکه بر تمام امور جهان تسلط دارد. جهانِ اسلام از این امر مستثنی نبوده و هم‌چنان تحت نفوذ امریکا قرار دارد. موضوع فقط" چرایی "این قضیه نیست؛ بلکه چگونه حاکم شدن امریکا را به‌جهان مورد بحث و بررسی قرار خواهیم داد.

## مروری بر سرگذشت آمریکا

با پایانِ جنگ جهانی دوم، انگلیس، فرانسه و دیگر قدرت های اروپایی، بیش‌ترین تسلطِ مستعمراتی خود را در جهان از دست دادند. از زمان جنگ جهانی اول، امریکا ویرانیِ اروپا را مشاهده می‌کرد و با پایان جنگ جهانی دوم، اطمینان حاصل کرد که قدرت‌های اروپایی قادر نخواهند بود تا از این مخمصه بیرون آیند. بنابراین، امریکا دانست که به‌خاطر انحطاط حتمیِ اروپا، زمان وارد شدن به صحنه‌ی جهانی فرارسیده است.

زمانی‌که دو جنگ جهانی در حال وقوع بود، در نخست امریکا از قاره‌اش این وقایع را تماشا می‌کرد و ترجیح می‌داد تا منحیث یک تماشاگر بوده و بر اقتصاد داخلیِ خود تمرکز کند. امریکا بعد از انقلاب صنعتی، رشد اقتصادی را مشاهده کرده و شکل‌دهیِ تأسیسات صنعتی خود را آغاز کرد. هرچند تاآن‌زمان در زمره‌ی کشورهای درحال توسعه قرار داشت. اگرچه امریکا در جنگ جهانی دوم مداخله کرد؛ اما بیش‌تر به‌انگیزه‌ی دفاع از خود در مقابل امپراتوری جاپان این کار را انجام داد. در سال‌های ۱۹٤٥ -۱۹٤٤م امریکا در جنگ جهانی دوم مداخله کرد؛ دقیقاً زمانی بود که نیروی نظامی‌اش ظرفیت کافی را برای حمایت اروپا به‌منظور سرکوب متحدین (آلمان، ایتالیا و جاپان) به‌دست آورده بود. بااین‌حال، در ختم جنگ جهانی دوم، صنعت امریکا توانایی رقابت با اروپاییان را یافت و صنعت جاپان رو به ضعف نهاد. این قضیه به امریکا یک فرصت طلایی را داد تا به صحنه‌ی جهانی وارد شده و پلان بزرگ استراتیژیک/راهبردی خود را پیاده کند که این کشور را برای سال‌ها در قدرت نگه خواهد داشت.

جورج کنان یکی از بزرگ‌ترین برنامه‌سازان استراتیژیک و مهندس آجندای استراتیژیِ جنگ سرد، در تحقیق شماره ۲۳ طرح پالیسی‌ها چنین بیان می‌کند: "ما در حدود ۵۰ درصد ثروت جهان را در دست داریم؛ اما فقط ۳ .٦ درصد نفوس آن را... در این وضعیت، ما نباید آماج حسادت و تنفر قرار گیریم. وظیفه‌ی واقعیِ ما در مرحله‌ی پیش‌رو ایجاد یک طرح جدیدی از ارتباطات است که به ما اجازه‌ی حمایت از این موضع نابرابر را خواهد داد... برای انجام این امر، ما باید از صحبت در خصوص اهداف غیرواقعی؛ مانند: حقوق بشر، معیارهای زندگی و دموکراتیزه کردن دست برداریم. دست‌کم این شعارهای آرمان گرایانه، ما را از کار باز خواهد داشت و این برای ما مناسب‌تر است. ۱) "

از این جهت، این یک‌زمان مناسب برای امریکا بود تا قوانین بازی‌اش را به‌منظور تأمین ضروریات خود طرح نموده و روابطی را ایجاد نماید که امریکا را بر آینده غالب سازد.

نخست- در نتیجه‌ی جنگ جهانی دوم سراسر قاره‌ی اروپا ویران شده بود؛ امریکا می‌دانست که ترکیب اقتصادی اروپا بزرگ‌تر از امریکا می‌باشد؛ چون شهرهای بزرگ‌تر و دانش آموخته‌گان بیش‌تری نسبت به امریکا داشت. بنابراین، امریکا می دانست که اگر اروپا تنها رها شود، خود را از تمام ویرانی‌ها نجات داده و به کشورهای سرمایه‌داری موفق تبدیل خواهند شد. بدین‌گونه تهدید جدیِ را علیه سرمایه‌گذاران و شرکت‌های امریکایی در آینده‌ی نزدیک ایجاد خواهند کرد. بنابراین، در جریان سال‌های۱۹۵۱ -۱۹٤۸ م، طرح مارشال به ارزش ۱۲ میلیارد دالر به هدف کمک قرضه به اروپا اجراء گردید که توسط آن یک سوم صادرات امریکا توسط کشورهای اروپایی خریداری شد. این برای امریکا بسیار مفید تمام شد؛ چنان‌که توسط آن، اروپا را تحت نفوذ خود نگه‌داشت.

دوم- این‌که، نظم نوین جهانیِ امریکا، موقعیت‌های مشخصی را برای منافع اقتصادیِ خود در جهان ترسیم کرد. آلمان و جاپان به‌خاطر داشتن تخصص صنعتی، نیروی کار دانسته می شدند. قرار بود در آینده، این کشورها برای تولید با نرخ بسیار بالا برای امریکا استفاده شوند. کشورهای جهان سوم به‌خاطر شاخص منابع و کار ارزان‌شان، شناخته شده بودند که این به کمربند صنعتی (وجود شرکت‌های زیاد صنعتی) امریکا کمک می‌کرد تا به تولیدات خود با هزینه‌ی بسیار پایین بی‌افزاید. از این‌رو، امریکا برای بخش‌های متفاوتی از جهان، با توجه به تأمین منافع اقتصادی توسط هرکدام‌شان به این کشور، نام‌های متفاوتی بر آن‌ها گذاشت.

سوم- آن‌که، ابطال معیار طلا در سال۱۹۷۱ م، در نتیجه‌ی خواست اروپایی‌ها برای تبدیل دالرهای‌شان به طلا، انجام شد. این به منافع علیای امریکا نبود؛ به‌خاطری‌که این قسم معاوضه ارزش دالر را پایین می‌آورد؛ برعلاوه، امریکا طلای کافی نداشت تا توسط آن، دالر را به چرخ‌اش بازگرداند. بنابراین، رئیس جمهور نیکسون معیار طلا را کاملاً از بین برد که برای همیشه اروپا و سایر کشورهای جهان به دالر وابسته شدند. امروزه ٤۰ درصد تمام داد و ستدها و معاملات جهانی به دالر انجام می‌شود. این یکی از بهترین اقداماتی بود که توسط امریکا در تلاش‌اش برای تبدیل‌شدن به ابرقدرت واقعیِ جهان و تأمین منافع‌اش در طول این مسیر، انجام شد.

کمونیزم یک تهدید جدی در این قضیه دانسته نمی‌شد؛ قسمی‌که با دموکراسی مقایسه می‌شود که مانع باثبات شدن کشورها خواهد شد. یکی از این کشورها ایتالیا بود. (۲) در جریان سال۱۹٤۸ م حزب کمونیست توسط یک مرجع مشروع دموکراتیک در حال قدرت‌گیری بود؛ از این‌رو، امریکا با رژیم فاشیست اسبق همکاری کرد تا با روی کار آمدن دوباره‌ی آن، به بی‌ثباتی در ایتالیا دامن زند. دموکراسی و رژیم‌های فراملیت‌گرا و ضدفاشیست هرگز برای امریکا خوب نبودند؛ به‌خاطری‌که از این طریق ملت بر منابع خود استقلال و تسلط داشته که مانع شرکت‌های امریکایی شده و بر سرمایه‌گذاران امریکایی محدودیت وضع می‌کرد.

وودرو ویلسون کسی بود که موضوع خودمختاری را برای دولت‌ها برنامه‌ریزی کرد؛ اما او می‌دانست که اگر دولت‌ها تبدیل به قدرت‌های مسلط شوند، این موضوع به ایشان اراده‌ی سیاسی خواهد داد که سبب به‌دست‌آوردن استقلال و ثبات اقتصادی خواهد شد؛ اما از تسلط بر منابع ملی‌شان یادی نکرد. از این‌رو، تهاجم بر جمهوری دمینیکان و جزایر هائیتی درحالی انجام شد که سربازان، هزاران تن را کشته و محیط زیست را ویران کردند. با روی‌کارآوردن رژیم‌های وحشی، نظام سیاسیِ بی‌ثباتی را ایجاد کرده و با کنترل شرکت‌های امریکایی در این مناطق، آن‌ها را ترک کردند. وودرو ویلسون فقط به منظور ازبین‌بردن نفوذ و تسلط اروپایی‌ها بر مستعمرات‌شان، موضوع خودمختاری را میان آن‌ها ایجاد کرد. اگرچه او می‌دانست که این قضیه در طولانی مدت در تضاد با منافع امپریالیستی امریکا قرار خواهد

گرفت؛ مگر او تصمیم گرفته است تا به تناقض‌گویی‌هایش ادامه دهد.

این هم یک لیست طولانی‌ست که چگونه امریکا در سراسر جهان کودتاهایی را برانگیخته است؛ مخصوصاً در کشورهای جهان سوم؛ مانند: ایران، ۱۹۵۳م، گواتمالا، ۱۹۵٤و۱۹٦۳ م؛ زمانی‌که" کندی "با یک کودتای نظامی برای جلوگیری از تطبیق دموکراسی به آن کشور بازگشت، برازیل۱۹٦٤ م و شیلی ۱۹۷۳م (۳). هرزمانی‌که در یک کشور انقلابی شکل می‌گیرد، امریکا سریعاً برای ازبین‌بردنِ انقلاب، به‌منظور جلوگیری از شکل‌گیری ثبات دموکراتیک در آن کشور، در امور آن مداخله می‌کند. دلیل آن این است که دموکراسی یک تهدید در برابر کاپیتالیزم بوده و آن‌ها مترادف هم نیستند. ارسطو در کتاب‌اش تحت عنوان" سیاست "موضوع مشابهی را بیان می‌کند که: "یا نابرابری را کاهش دهید و یا هم دموکراسی را. (٤) " او نظامی را ترجیح می‌دهد که بین الیگارشی و دموکراسی قرار داشته باشد؛ به‌خاطری‌که هردو به هرصورت ایجاد مشکل می‌کنند. غرب تا حال در ایجاد یک نظام سیاسی قابل قبول، ناکام بوده است. حتی در امریکا، ارزش‌های لیبرال دموکراسی فقط و فقط برای الیت‌ها (نخبه‌گان) بوده و می‌باشد. چیزی‌که وجود دارد، لیبرال دیکتاتوری است؛ نه چیزی دیگر. دموکراسی هرگز در شکل خالص و کامل آن وجود نداشته؛ چراکه شکل خالص دموکراسی به‌خاطر وجود الیت‌ها (نخبه‌گان) وحشی‌تر از حالت ناخالص آن است. دولت‌ها الگوی مصنوعیِ را از آزادی و خوش‌بختی با محدوده‌ای بسیار دقیق خلق کرده و توسط آن می‌خواهند مردم را فریب داده و تحمیق‌شان کنند.

در کتاب" نظام میان امریکایی "که توسط انستیتیوت امور بین‌المللی رویال در لندن تحقیق و مطالعه شده چنین آمده: "زمانی‌که امریکا برای دموکراسی چاپلوسی می‌کند، تعهد واقعیِ آن برای سرمایه‌گذاری خصوصی نظام کاپیتالیزم است. زمانی‌که حقوق سرمایه‌گذاران تهدید می‌شود، دموکراسی باید برود و اگر از این حقوق محافظت شود، قاتلین و شکنجه‌گران آن را خوب خواهند ساخت. ۵) ")

## جهان اسلام در وضعیت بی‌تفاوت به‌سر می‌برد

امریکا از نظامیان کشورهای خارجی به‌منظور ایجاد بی ثباتی اقتصادی، اجتماعی و سیاسی در کشورهای اسلامی استفاده می‌کند. سپس آنان را با یک عالم مشکلات به افراد ملکی واگذار می‌کنند تا برای‌شان یک رهبر برگزینند؛ یا بعضاً خود امریکا بر اساس وضعیت شکننده‌ی آن کشور برای‌شان یک رهبر مقرر می‌کند. سرانجام، این حکام به‌خاطر حصول قرضه ها/وام‌های صندوق بین‌المللی پول برای تأمین ثبات در کشورشان به سمت امریکا می‌شتابند. ازین‌رو، صندوق بین‌المللی پول، بعد از عقب‌نشینی بخش نظامی، حاکمیت کشور را کاملاً به دست می‌گیرد و آن را وابسته به امریکا می‌کند. بناءً نیازی به اقدام نظامی نیست؛ چون صندوق بین‌المللی پول برنامه را به‌پیش می برد؛ مگر آن‌که باردیگر مردم به‌پا خیزند؛ در آن صورت یک‌بار دیگر امریکا از عملیات نظامی برای راه‌اندازی بی‌ثباتی استفاده نموده و دوباره به همان ترتیب ادامه می‌یابد... آشنا به‌نظر می رسد، نه؟

با این کار، نخبگانِ متحد خارجی امریکا بر سر قدرت باقی می‌مانند و نخبگان منطقه‌ای نیز می‌توانند به سلامتی این دوستی از کیک آن‌ها سهمی داشته باشند؛ حال آن‌که ۹۰ درصد نفوس معمولی که افراد ملکی بی‌گناه استند، از این اوضاع سخت رنج می‌برند. امریکا این‌گونه خاورمیانه، امریکای لاتین و افریقا را زیر نفوذ خود قرار داده‌است.

امریکا در خاورمیانه دیکتاتوران و پادشاهانی را نصب می کند تا منابع آن منطقه را به دسترس متحدان‌اش قرار دهند و بالآخره به‌سپاس‌گزاری از مزدوری و اطاعت‌شان یک تکه کیک را به آنان شرینی می‌دهد. امریکا از دیکتاتوری؛ مانند: عبدالفتاح سیسی، که به اصطلاح، آزادی بیان، آزادی عقیده و دیگر آزادی

های لیبرال- سیکولار را که بر مردم تحمیل می‌کند، کاملاً راضی است. سربازان سیسی به‌تجاوز، شکنجه و قتل هرکسی‌که خواستار حاکمیت اسلام است و یا به آن وابسته‌گی مبدأیی دارد، اقدام می‌کنند؛ حال آن‌که امریکا برای کمک‌رسانی به این مظلومین هیچ اشتیاقی از خود نشان نمی‌دهد. مثلاً امریکا در جریان انقلاب مصر فوراً به کمک سیسی شتافت تا او را در قدرت حفظ نموده و برای سرکوب قیام یاری‌اش دهد.

نقش پاکستان در بحران جدیدی‌که اخیراً در کشمیر شروع شده از همین‌گونه‌است. عمران خان در خصوص لغو ماده ۳۷۰ توسط مودی، به نسبت سخنان تند فراوان، اقدامات کمی را به کار برده‌است. در حقیقت، امریکا تنها کشور صاحب حکام مزدور است و این حکام مزدور نیز امریکا را در رسیدن به منافع سلطه گرایانه‌اش؛ مثلاً: نهاد استعماری صندوق بین‌المللی پول یاری می کنند. عمران خان با تداوم سیاست قرضه‌گیری/وام‌گیری از صندوق بین‌المللی پول، این کشور را بیش‌تر به‌ریسمان صندوق بین‌المللی پول وابسته می‌کند. اکثر سیاست‌های صندوق بین المللی پول؛ مثلاً: قانون‌زدایی برای ترویج سرمایه‌گذاری مستقیم خارجی FDI))، کاهش ارزش ارز، افزایش صادرات به امریکا و فراهم‌آوری تسهیلات برای خصوصی‌سازی، در دراز مدت به پاکستان خسارات مهلکی را وارد خواهد کرد. همه‌ی این سیاست ها به متحدان امریکا برای حفظ و افزایش ثروت‌شان کمک می کند. حکومت خصوصی‌سازی را بی‌اندازه گسترش داده‌است؛ ولی از جانب دیگر این مردم استند که از وضع مالیات سنگین، سخت رنج می‌برند. این استراتیژی، حکومت مقروض/بدهکار را همیشه در قرض/وام نگه می‌دارد.

بناءً واضح است که امریکا یک سلسله کشورها را برمبنای سرمایه‌داری به‌خود وابسته کرده‌است تا نتوانند نیروی اقتصادی و نظامی یگانه ابرقدرت جهان را به‌چالش بکشند. تمام تجارت نفت جهان توسط دالر انجام می‌شود، اکثریت تحریم‌ها از طریق دالر وضع می‌شود و نخبه‌گان سرمایه‌دار امریکا در سراسر جهان توسط سازمان‌های نولیبرال پوشش یافته‌اند؛ مثلاً: کمیسیون بیلدربرگ و تریلاتیرال با تحمیل سیاست‌های صندوق بین‌المللی پول بر ملل پیش‌رفته در دهه‌ی هفتاد قرن بیستم، توانست از تأثیرات مخرب بحران نفتی بر جاپان و اروپا، که متخصصان صنعتی امریکا بودند، بکاهد.

این باعث شد دنیای صنعت؛ یعنی جاپان و اروپا؛ برعلاوه‌ی نظام دالر امریکا، دهه‌ها با از بین بردن تمایلات دموکراتیک، ملیت‌گرایی و انقلابی در جهان (به‌خصوص جهان سوم) ثبات خود را حفظ کنند. امریکا توسط صندوق بین‌المللی پول جلو روندهای صنعتی‌سازی بسیاری را گرفته‌است؛ به‌جز آن‌هایی‌که واقعاً انجام آن‌ها را ضروری می‌دید؛ به‌طور مثال، امریکا در سال ۲۰۰۳ م به‌بهانهٔ دموکراسی وارد عراق شد و اداره‌ی میدان‌های نفت آن را به کمک متحد انگلیسی‌اش مستقیماً به دست گرفت. این بخشی از" سلطه‌ی طیف کامل "است که امریکا از طریق آن به دنبال تنظیم پیشرفت‌های اقتصادی، سیاسی، نظامی و انحصار تکنالوژی/فن‌آوری نظامی و میدان‌های انرژی می‌باشد.

امریکا دولت‌های جهان را به‌ذخیره‌ی ارزهای‌شان دستور می‌دهد؛ ولی از طرف دیگر، خودش سبب تخریب گوشه و کنار جهان شده‌است تا کسی نتواند تهدید بالقوه‌ای در برابر هژمونی امریکا باشد. هرکه خود را از این چرخه‌ی وابسته‌گی بیرون کند، سرانجام دوباره به‌سمت امریکا برخواهد گشت. طوری‌که اخیراً دیدیم، عمران خان قصد دارد دهلیز اقتصادی چین – پاکستان (CPEC) را ترک کند و باردیگر برای ادامه‌ی حمایت اقتصادی و نظامی جنگنده‌های – F ۱٦؛ به‌علاوه‌ی لغو گروه ویژه‌ی اقدام مالی FATF))، به امریکا بپیوندد. پاکستان دانسته‌است که چین نمی‌تواند آن‌چه از حمایت اقتصادی، نظامی و دیگر حمایت هایی را که امریکا در توان دارد، انجام دهد؛ چون امریکا نظم جهانی را به‌گونه‌ای تنظیم کرده‌است که همیشه موقعیت همه را در نظام جهانی سرمایه‌داری ثابت نگه می‌دارد.

### توازن قوا در خاورمیانه

بعد از ایجاد وابسته‌گی اقتصادی در منطقه توسط توحش اقتصادی، امریکا از اسرائیل به‌منظور حفظ توازن در مناطق خاورمیانه‌ی شرقی استفاده می‌کند. او بدین‌گونه از منافع اقتصادی خود در منطقه حفاظت می‌کند. در بازگشت به‌کمک‌ها به اسرائیل، امریکا به‌خاطر منافع شخصی خود به این کشور کمک می‌کند؛ مانند: کرانه‌ی غربی رود اردن و غزه. از سال ۱۹۶۷م، امریکاییان در هردو جانب لیبرال‌ها و جمهوری‌خواهان در خصوص تأسیس اسرائیل به‌صورت افراطی متحد بودند؛ مانند: تسلط بر اورشلیم شرقی عرب؛ اگرچه افکار عمومی در جهان آن را محکوم می‌کنند، امریکا هنوز هم با پول و تفویض صلاحیت در منطقه، این کشور را تمویل می‌کند تا هرچه دوست دارد، انجام دهد. هم‌چنان یک عنصر افراطی مسیحی هم در این منطقه وجود دارد؛ یا به‌عبارت دیگر صلیبی‌هایی که امریکا به آن ها و اسرائیل این اجازه را می‌دهد تا قساوت وحشیانه‌ی خود را علیه مسلمانان فلسطین به انجام برسانند. ۱۰))

چنین قضیه‌ای هم‌چنان در خصوص ایران و عربستان سعودی جریان دارد که برای حفظ توازن قوا در منطقه توسط امریکا استفاده می‌شوند و این نشان‌دهنده‌ی بسیار شکننده‌بودن منطقه است. هر دو همسایه ایران، در سمت راست و چپ دارای سلاح‌های هسته‌ای هستند، پاکستان در یک جانب و اسرائیل در جانب دیگر؛ به‌همین دلیل، ایران خواهان داشتن سلاح‌های هسته ای است؛ هرچند امریکا با اعمال تحریم‌ها بر ایران فشار آورده و می‌خواهد که ایران فرایند ساخت‌وساز سلاح‌های هسته‌ای‌اش را توقف دهد. اگر ایران در ساخت سلاح‌های هسته‌ای موفق شود، از این موضوع اسرائیل احساس تهدید می‌کند. این نزاع سبب آتش‌گرفتن نفت منطقه در خلیج فارس خواهد شد که در نتیجه قیمت نفت بسیار بلند خواهد رفت و بر اقتصاد جهانی تأثیر خواهد گذاشت. (۱۱) هرچند این توازن قوا فقط در خاورمیانه اعمال نشده؛ بلکه در بخش‌های دیگری از جهان نیز این موضوع تطبیق می‌گردد. مثلاً ناتو برای توزیع قدرت میان ملل اروپایی توسط امریکا استفاده می‌شود. هرچند این فقط یک تصویری از چگونگی حفظ نفوذ امریکا در جهان اسلام است.

### نتیجه‌گیری

تنها راهی بیرون رفت از این چرخه، استفاده از تغییر تکتونیک ایدیولوژیک است؛ چیزی‌که امنیت و صلح واقعی را برای جهانیان به‌وجود خواهد آورد. ایدیولوژی‌که غرایز و حاجات عضوی انسان‌ها را به‌شکل درست آن اشباع نموده، با آوردن نظام های اقتصادی و سیاسی کاملاً متفاوت که امنیت، صلح و عدالت را برای تمام شهروندان خود تأمین خواهد کرد و توانایی غالب‌شدن بر نظام سرمایه‌داری فعلی را دارد. بنابراین، اسلام تنها ایدیولوژی است که توانایی به‌دست‌آوردن این مطلوب را دارد. کمونیزم به زباله‌دانی تاریخ فرستاده شده و کپیتلیزم تنها امید انسان‌هاست؛ هرچند این یک آرزوی در حال نابودی‌ست. به‌خاطر واقع‌گرا شدن بسیاری از مردم در برابر تغییر، هرگز نمی‌توانند از این نظام فرار کنند؛ مگر این‌که یک نظام عالی و قدرت‌مند آمده و جایگزین آن شود. برعلاوه، اسلام هم‌چنان مفهوم منطق توازن نظامی را توسط قدرت ایدیولوژی به مبارزه می‌طلبد، اسلام قدرت‌های روم و فارس را به زانو درآورد؛ هرچند موقعیت جغرافیایی مدینه حالت مطلوب را نداشت. حقیقتاً! اسلام دوباره خواهد آمد و جهان را آزاد خواهد کرد، با طریقه‌ای که ۱٤۰۰ سال قبل انجام داد و منتظر است تا نام آن منحیث ابرقدرت در کتاب تاریخ نوشته شود، بسیار نزدیک است.

﴿هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ﴾ [توبه: ۳۳]

ترجمه: او کسی است که پیامبر خود را برای هدایت مردم فرستاد، با دینی درست و برحق، تا او را بر همه دین‌ها پیروز گرداند؛ هرچند مشرکان را خوش نیاید.

نویسنده: محمد مصطفی

# هند کې راټولنکي بشري ناورين

## او د نړۍ دردونکې چوپتیا

حسن مومند

له نړيوالو رسنيوله لارې به محترم لوستوال خبرشوي وي چې دهند دآسام ايالت ۱۹ سوه زره مسلمانان دمودي ادارې دهند دتابعيت نه محروم کړل چې اوس يې دهېواد نه د ويستلو تياري روان دی.

په نړۍ کې هر لور ته د بشر دحقوقو دساتنې خبرې کېږي؛ د فقر، بې کارۍ او بې کورۍ د له منځه وړلو کانفرانسونه جوړېږي او بياهدف ته رسېدلو او مقصد کې دبرياليتوب لپاره دسترو پلانونو وړاندې کولو دعوی کېږي خو په عمل کې يې هيڅ نتايج نه تر سترګو کېږي؛ بلکې هېوادونه او خلک ورځ تربلې بډای کېږي او غربت او فقر دکمېدو پرځای لا پسې زياتېږي؛ بې کوره خلکو ته دکورونو ورکولو خبره خو ډېره لرې ده اوس دټولې نړۍ همدا غريب خلک دي چې په يو پسې بل هېواد کې دخپلوهغه کورونو نه ويستل کېږي چې دخپل ژوند ټوله ګټه وټه يې مصرف کړې وي اوهمدا يې دژوند ترټولو ستره مادي ګټه ګڼل کېږي.

پرنړۍ چې سرمايه دارانه زبېښناکګر نظام مسلط دی دغريبو وګړو دغربت نه دنړۍ په هرګوډ کې سوء استفاده روانه ده او له مختلفو لارو ددوئ استحصال کېږي.

دغربت او فقر له منځه وړلو ټولې نارې غولونکې دي؛ ددې نړيوالو کانفرانسونو جوړول او بيا پدې کې اعلانونه يواځې ددې لپاره وي چې دغربت دله منځه وړلو او دغريبو او بې کوره شوو خلکو سره دمرستو په نوم دمحکومو بډايو هېوادونو نه ښه ډېرې پيسې راټولې کړي او دلويديځ زبېښناکګر هېوادونه پرې خپلې هغه اين جي اوګانې وچلوي چې يې په نړۍ کې دخپلو شومو اهدافو دتطبيق لپاره جوړې کړيدي.

حقيقت دا دی چې دنړۍ دا بې وزلان د بې رحمو پانګوالو دسختو ظلمونو ښکار دي؛ دوئ ته دحقوقو ورکولو؛ ددوئ دفقر ختمولو او سرپناه برابرولو چغې وهل کېږي خو چې دا بې وزلان په ډله ايزه توګه وژل کېږي عفتونه يې لوټ کېږي؛ له خپلو سيمو او کورونو ويستل کېږي کښتونه يې تباه کېږي او مالونه يې لوټ کېږي نو بيا دا نړۍ چوپه خوله وي؛ ددې ټولو ظلمونو ننداره کوي او دمکر نه ډکو دغندنې دځو ټکو پرته دظالمانو وحشيانو پرضد هيڅ عملي اقدام نه کوي.

په برما کې دولتي بودايې فوځيانو او عامو بودايانو له ۴ سوه زره نه زيات غريب بې وسلې مسلمانان ووژل؛ په لسګونو زره مېرمنې يې بې عفته کړې اود يو مليون نه زيات يې دخپلو کورونو نه وويستل؛ بنګله ديش او نورو هېوادونو ته يې هجرت کولو ته اړ کړل او ددوئ ټول مالونه يې غصب، کورونه يې وران او فصلونه يې ورتباه کړل او ترځنګ يې ددې مسلمانانو تابعيت هم ورختم کړ؛ دبرما دا مسلمانان اوس داسې انسانان دي چې په خپل هېواد کې ترې تابعيت اخستل شوی او دبنګله ديش په شمول دنړۍ کوم بل هېواد هم دې ته ندی تيار چې دې مظلومانو ته تابعيت ورکړي.

نړۍ ددې ټولو ظلمونو ننداره وکړه او کوي يې؛ ملګرو ملتونو اروپايې ټولنې دبشر دحقوقو ادارې ددې دومره ستر وحشت په مقابل کې هيڅ ونکړل؛ نه دبرما دولت باندې کوم بنديز ولګېدلو؛ نه ورسره چا روابط پرې کړل؛ نه پرې له کوم لورې فشار راوارد شو؛ نه په ټوله برما کې ددې ظلمونو له امله څوک مجرم وګڼل شو او نه يې چا دظلم نه د ډکو پرېکړو پروړاندې جدي غبرګون ښکاره کړ ځکه چې ددې ستر ظلم او وحشت ښکار شوي ټول خلک مسلمانان وو.

اوس چې دا هر چاته روښانه شویده چې په نااسلامي هېوادونو کې که پرلګکیوو مسلمانانو هر څومره زیات ظلمونه وشي څوک یې دپوښتنې کولو نه وي نو هند هم دبرما په پل دقدم ایښودلو اراده لري او دآسام ایالت ۵ میلیونه انسانان چې قاطع اکثریت یې مسلمانان دي دهند دتابعیت نه محروموول غواړي.

آسام دبنګله دیش سره لګېدلی دهند شمال شرقي ایالت دی چې ۳۳ میلیونه او ۹ سوه زره انسانان پکې ژوند کوي د ۱۱ میلیونو نه زیات یانې دنفوسو ۳۴ سلنه یې مسلمانان دي چې ۹ میلیونه یې بنګالیان یانې د بنګله په نوم دپخواني هند دسترې قبیلې سره تړاو لري؛ دبنګله قبیلې سره تړاو لرونکي دا ۹ میلیونه انسانان دآسام خپل اوسېدونکي دي او د هند دتقسیم پرمهال همدلته په خپلو سیمو کې پاتې شوي وو؛ ددوئ اکثریت نالوستي دي او دکابو ټولو ژوند په زراعت او مالدارۍ تېرېږي.

دا چې ددوئ تړاو دبنګله قبیلې سره دی او په هند کې بنګالیان بلل کېږي نو دهند متعصب هندوان یې دهند اصل اوسېدونکي نه ګڼي او له ډېر پخوا راهیسې یې دهند نه بنګله دیش ته دشړلو هڅې رواني دي خو اوس چې دبرما دولت او بودایي ولس په ګډه دبرما نه یو میلیون روهنګیا مسلمانان وویستل او په نړۍ کې یې پرضد هیڅ غبرګون رامخې ته نه شو نو دنریندر مودي په مشرۍ کې دهند اوسني متعصب دولت هم جرأت پیدا کړ او دآسام نه یې دبنګالي مسلمانانو دویستلو او هویت له منځه وړلو پرېکړه وکړه.

دآل انډیا آسام سټوډنټس په نوم دمتعصبو هندو محصلینو تنظیم د هند نه دبنګالي مسلمانانو د ویستلو په هدف په ۱۹۷۹م کال کې تحریک پیل کړی و چې په ۱۹۸۳م کال کې یې زور واخست پرمسلمانانو ډېر بریدونه وشول چې پکې له ۲ زره ۵ سوه نه زیات مسلمانان ووژل شول.

دراجیو ګاندي ددولت په مداخلې تاوتریخوالی راکم شو خو ترڅنګ یې دا پرېکړه وکړه چې څوک د۱۹۷۱م کال دمارچ د ۲۴ مې نېټې نه وړاندې په آسام کې دهستوګنې ثبوت وړاندې نکړي دهغوئ نومونه به دانتخاتي لړ لیکونو نه وځي. دا پرېکړه شوې وه خو عمل پرې نه وشوی. خو اوس دمودي اسلام او مسلمان دښمنه دولت بیا همدا خبره راپورته کړه؛ دیو میلیون او ۹ سوه زرو مسلمانانو نومونه یې دانتخاباتي لړلیکونو نه وویستل؛ ددوئ هویت یې ختم او ناقانونه کډوال یې وګرځول.

ددې ترڅنګ یې دوئ په خپلو کورونو کې نظر بند کړل؛ ۱۲ زندانونه یې ورته جوړ کړل او داحتمالي لاریونونو دځپلو په موخه یې ۸۰ زره اضافي پولیس او ۲۰ زره فوځیان آسام ته راوستل.

لکه دمخه موچې وویل دآسام دکابو دوه میلیونه خلکو نومونه دانتخاباتي لستونو نه ویستل شویدي خو دهند رسنئ پخپله دا مني چې داشمېره به تر۵ میلیونه رسېږي؛ خوددې لپاره چې دمودي اداره په هېواد کې دننه یا دنړیوالو دجدي غبرګون سره مخامخ نه شي نو دا شمېره اوس کمه ښوول کېږي.

دهویت نه دبې برخې کولو دستونزې سره یواځې عام خلک ندي مخامخ بلکې په دولتي رسمي ادارو کې په خدمت بوخت اوپه فوځ او پولیس کې په دندو ګومارل شوي او له دې دواړو ادارو متقاعد سړي هم ددې قانون لاندې راغلي دي او دوئ ټول به هم دهېواد نه ویستل کېږي.

خو عجیبه دا ده چې ددې دومره ستر راتلونکي بشري ناورین په اړه ټوله نړۍ چوپه خوله ده ځکه چې دا ستونزه دمسلمانانو ده؛ مسلمانان به له هویت نه بې برخې کېږي مسلمانان به له کورونو ویستل کېږي مسلمانان به وژل کېږي؛ مسلمانان به ددر بدرۍ سره مخامخ کېږي اومسلمانې مېرمن به بې عفته کېږي.

دبشر دحقوقو نړیوالو ادارو ددوه میلیونه انسانانو دهویت نه په بې برخې کولو خپلې اندېښنې ښکاره کړیدي او دا یې پدې هېواد کې دمسلمانانو پرضد پرتعصب ولاړ اقدام ګڼلی دی.

دآسام پخواني والي ترون ګوګویې هم ددولت دا اقدام تاواني ګڼلی او پدې کار یې خپله سخته ناخوښي ښکاره کړې.

طبعي ده چې دآسام دا خلک به بنګله دیش ته شړل کېږي خو دحیرانتیا خبره دا ده چې دبنګله دیش دولت دهند دا ناوړه اقدام نه غندي او نه پدې اړه دنورې نړۍ نه ددې اقدام دمخنیوي غوښتنه کوي.

# مولوي جلال الدين (حقاني)

## د کفري جګړې پر وړاندې ستر مقاوم رهبر

م عبدالحق حقاني

نن د یو سربښندونکي اتل، د څلورو نوموتو شهیدانو پلار، د افغانستان عمر مختار او د مرحوم مشر ملا صاحب د هغه وفادار ملګري تلین دی چې ټول ژوند یې د الله جل جلاله په لاره کې تېر کړ.

مرحوم حقاني صاحب هغه اتل و چې د وخت هېڅ جابر او ظالم ته یې سر ټیټ نه کړ بلکې مقابلې ته یې ښه په مېړانه میدان ته راوتلی و.

محترم حقاني صاحب د الله جل جلاله د لارې یو ملنګ مجاهد، خالد ثاني او د معاصر تاریخ د امت مسلمه ستر جنرال و.

مرحوم حقاني صاحب د شرق او غرب پر وړاندې د مسلمانو افغانانو د جهاد یو نوموتی جهادي مشر او نوښتګر قاید و.

کله چې روسي یرغلګرو په ګران هېواد په چالاکۍ سره برید وکړ. حقاني صاحب رحمه الله د ریښتوني مجاهدینو په صف کې ودرېدلو. په صادقانه جګړه یې پیل وکړ. حقاني د ملګرو تر منځ ښه وځلېدلو. سلګونو هېوادوالو اقتداء ورپسې وکړه. په ډېر مجبور او مشکل حالاتو کې یې جهاد ته ادامه ورکړه. لوږې تندې او زخمونه یې وګالل.

دا چې د روسي یرغل په وخت کې د مجاهدینو مختلف ګوندونه وو او تر منځ یې څه نا څه اختلاف طبعي خبره وه خو حقاني رحمه الله د حقانیت ستر منار هیڅکله چا سره اختلاف ونه کړ او همیشه به یې خپل ټول زور او ځواک د دښمن په زیر کولو مصرفولو. د داخلي تشنج او اختلاف مخه یې همیشه په خپل اخلاص او ریښتونولۍ سره نیوله.

د څه باندې یوې لسیزې له مقدس جهاد وروسته رب العالمین شوروي اتحاد مات کړ او اوس یې خلک په روسیه پیژني.

په ډېر تاسف سره باید و وایو د شوروي اتحاد له ماتېدلو وروسته افغانستان د داخلي جګړو په میدان بدل شو. حقاني صاحب رحمه الله د خپل نوم د وروستاړي اصل مصداق جوړ شوی و او د وخت په تر ټوله حساس وخت کې یې د پاشل شویو وروڼو تر منځ د روغې جوړې او یو والي لپاره هلې ځلې وکړې. خو حالات سم نه شول او د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په مشرۍ طالبانو د شر او فساد مخنیوي په خاطر پاڅون وکړ. حقاني صاحب رحمه الله د حق پرستو ملګری شو او بیا یې د شر و فساد په خلاف په مقدسه مبارزه پیل وکړ.

په لنډ وخت کې امارت اسلامي په ۹۵٪ خاوره حاکم شو. خو دا ځل امریکایانو په بې ځایه او بې ثبوته دعوو په ګران هېواد یرغل وکړ. حقاني صاحب رحمه الله یو ځل بیا د جهاد سنګر ته مخه او په داخلي او خارجي قوتونو یې د افغانستان زمکه سور اور وګرزوله. خپلو بچیانو ته یې امر وکړ چې د جهاد په دې سپیڅلې دوره کې له هیڅ قربانۍ دریغ ونه کړئ. په خپل ټول اخلاص د دښمن مقابله وکړئ او لله الحمد د دوی کوښښونو، کړاونو او د قید و بند صعوبتونو رنګ راوړی او نن امارت اسلامي د فتح تر درشله رسېدلی دی.

حقاني صاحب رحمه الله له زلمیتوبه تر وفاته په مېړانه د دین او وطن دفاع وکړه، هېڅ قسم مادیاتو ته مایل نه شو.

د سنګرونو اتل د محرابونو واعظ د جرګو او مرکو سړی و.

محترم حقاني صاحب مور ته راوښوول چې هغه جګړې چې د ممبر له پاسه بیانېدی شي، عملا د جګړې په ډګر کې هم تر سره کېدی شي او د لذت کچه یې لوړېږي.

محترم حقاني صاحب د اسلامي امت ستر اتل، ریښتونی محب او یو دردمن مجاهد و، خپل هرڅه یې د امت تر مصالحو قربان کړل، غرونو ته یې مخه کړه سختۍ او کړاوونه یې وګالل او د نړۍ د ستر فرعون غرور یې له خاورو سره برابر کړ.

د اسلام او افغان خاورې د استقلال د اخیستلو په پار یې د کورنۍ د زیات تعداد وګړو په شمول څلور شیرین اولادونه هم نذرانه کړل.

په خپله یې خپل جلال دومره دنګ وساتلو تر هغې چې یې په روح کې ساه چلېده.

محترم حقاني صاحب خپله بیره د الله جل جلاله په لاره کې سپینه کړه.

محترم حقاني صاحب هغه شخصیت و چې د جهاد په اذان یې د الحاد پر ضد ویده ولسونه راویښ کړل.

محترم حقاني صاحب د حق او باطل ګرمو معرکو ته زرګونه داسې جنرالان وروزل چې ستړیا نه پېژني او په شهادت مین خلك دي.

محترم حقاني صاحب جهان ته وښوول چې د حقیقي مشرانو ځایونه د معرکې لومړۍ کرښې دي.

راتلونکی نسل یې په جهادي روحیه سمبال وروزلو.

بچیانو یې تاریخ ته خپل نومونه د شهیدانو او اسیرانو په لیست کې وړاندې کړل.

محترم حقاني صاحب - رحمه الله - د مجاهدینو د سر لښکر الحاج خلیفه سراج الدین - حفظه الله ورعاه - د سر سیوری و، هغه سراج الدین حقاني چې صلیبیانو ته د دې پېړۍ ایوبي صلاح الدین دی.

د مولوي جلال الدین حقاني رحمه الله د ژوند او د جهاد خاطرې به د قلم نوکه مکملې نه کړي، ځکه حقاني صاحب مدبر رهبر، جید عالم، غښتلی جنرال، د شجاعت منار، د صبر او استقامت غر او د نیکو اخلاقو سمندر و، د ژوند تر وروستۍ سلګۍ یې ضمیر او وجدان په عمري مسیر محکم وساتو او خپلو اولادونو او هېوادوالو ته یې د جهادي مبارزې او فداکارۍ درس ورکړ.

تاریخ هر څه په خپله پاڼه کې ثبت کوي حقاني جلال به نه تکرارېدونکی اتل، د مېړانې، ایثار او فداکارۍ سمبول ولیکي.

رحمه الله رحمة واسعة

## داسلامي او غربي تهذیب تر منځ توپیر

کوم څه او کوم کار ته چې دین بد او ګناه ویلي وي نو هغه شي او کار په هر وخت او ځای کې بد او ګناه ده .اګر چه ځینې وختونه او ځایونه ظاهري او فورې لنډ مهاله ګټه هم ولري.

او دین چې کوم څه ته بد یا ګناه ویلي وي هغه کار حتما په دنیا او آخرت دواړو کې بدې پایلې لري.

مګر غربي تهذیب ، فکر او فلسفه وایی:

کوم شي او کار چې په دې دنیا کې فورې ګټه ولري هغه ښه کار دي او باید وکړل سي .د دوي په فکر سود خورې فورې ګټه لري باید سود وخوړل سي ، زنا جنسي غریزې ته تسکین ور کوي باید وسي ، شراب د څو شېبو دپاره انسان د غمونو څخه غافله کوي باید وخوړل سي ، قیمار بې زیار ګاللو ګټه لري باید وکړل سي ، د زړښت په وخت کی د والدینو خدمت او طاعت کومه محسوسه ګټه نه لري نو خدمت یی باید ونسي ، د قانون مراعتول په خپل هیواد کي فورې ګټه لري باید مراعت سي ، که د یو چا سره مرسته کول فورا وجدان ته هوسایی ور کوي او د شهرت باعث ګرځي باید دا کار وسي او که یی نه لري ، په بلا یی وهو ، ظاهرا او اوس فعلا د مسلمان وژل ، تکلیفول او د هغه مال او دارایی چورول په نړیوالو سازمانونو کي داسي خاص جدې جرم نه ګڼل کیږي او نه یی څوک پوښتنه کوي ، نو هر څه چی ورسره کیږي کومه جدې ستونزه نه ده باید ورسره وسي ، مګر په خپلو هیوادونو کی کچیری د سپیانو ، پیشیانو ژغورل د خلګو او حکومت د تشویق او د شهرت د تر لاسه کولو سبب دي باید دا کار وسي .که اخلاقو محسوسه ګټه درلودل باید وسي او که نه باید ونسي

لنډه دا چي هر هغه کار چي په دې ژوند کي ګټه لري ، پیسو او شهرت د پیدا کولو سبب ګرځي باید غربي او ماده پال انسان پرې صرفه ونه کړي.

په غرب کي که څوک اختراع کوي ، یا لیکنه او تحقیق او یا بل ظاهرا ښه کار ، نو دا صرف او صرف د پیسو ، شهرت او قدرت د پیدا کولو دپاره کیږي او بس.

# سل نړیوال متلونه

۱. زه سپوږمۍ ته اشاره کوم او احمق مې ګوتې ته ګوري (چینایي متل)

۲. ننني هګۍ تر سبانۍ چرګې ښه ده (پولنډي متل)

۳. د یوه خره یوه کته وي (منګولیایي متل)

٤. پردۍ تېروتنه تل تر خپلې هغې ډېره ځلیږي (روسی متل)

٥. مېلمه لومړی سره زر وي، بیا سپین زر شي او بیا اوسپنه ترې جوړه شي (روسی متل)

٦. که رمه اتفاق وکړي، زمری به په لوږه ویده شي (کینایي متل)

۷. راتلونکي ته خوشبین اوسه خو چمتووالی د سختۍ لپاره کوه (جاپانی متل)

۸. مړو پیشانو ته موږکان هم نصحیت کوي (المانی متل)

۹. تشویق نیمایي مرسته ده (ایټالوی متل)

۱۰. څوک چې په جېب کې پیسې نه لري، ژبه یې باید د وریښمو وي (مالیزیایي متل)

۱۱. ودانه خیمه تر کنډواله ماڼۍ غوره ده (جاپانی متل)

۱۲. که چا له شا په لغته ووهلې نو پوه شه چې ته مخکې یې (فرانسوی متل)

۱۳. له څاڅکو څاڅکو ویالې جوړیږي (جاپانی متل)

۱٤. مینه او عطر نه پټیږي (چینایي متل)

۱٥. یو رښتین بې عقل، تر سلو دروغژنو هوښیارانو غوره دی (چینایي متل)

۱٦. خر د سرو زرو په کتې نه آس کیږي (جرمنی متل)

۱۷. د لویې ونې سیوری تر مېوې زیات وي (ایټالوی متل)

۱۸. د تیار پلاو ونه نشته (جاپانی متل)

۱۹. انسانیت اسانه دي خو سرېتوب سخت دی (روسي متل)

۲۰. که سرې موږ شي د ډوډۍ په خوند نه پوهیږي (سکاټلنډی متل)

۲۱. مفلس له بازاره په منډه تیریږي (انګریزی متل)

۲۲. تر اوو کالو پلټنو وروسته په یوې خبرې باور کوه (جاپانی متل)

۲۳. ژړا اړتیا ده خو چاره نه ده (چینایي متل)

۲٤. د شپیلۍ اواز ځکه اوچت وي چې منځ یې تش دی (ترکی متل)

۲٥. د شتمن ټوکه تل خندوونکې وي (ایټالوی متل)

۲٦. د زړې ونې مېوه خوږه وي (نایجیریایي متل)

۲۷. د ځنځیر قوت په کمزورې کړۍ کې وي (کاناډایي متل)

۲۸. بې ملګرو سړی د بې ګوتو لاس په څېر وي (انګریزی متل)

۲۹. څوک چې د مچیو ځاله ورانوي، منډه یې باید ښه زده وي (سینګالی متل)

۳۰. مینه ډار نه پېژني (جرمنی متل)

۳۱. مینه خرو ته ګډا ورښیي (فرانسوی متل)

۳۲. د دنګو ماڼیو ډېری لوړ منزلونه تش وي (جرمنی متل)

۳۳. پر غلي خره دووه تنه سپریږي (ارمینیایي متل)

۳٤. که لیوه قاضي وي نو د رمې دي خدای مل سي (ډنمارکی متل)

۳٥. ډېر خلک بل ته ګواښیږي خو خپله له ډاره لړزیږي (ایټالوی متل)

۳٦. قرض په خبرو نه خلاصیږي (انګریزی متل)

۳۷. د چا څټ چې له خاشاکو جوړ وي همیشه له اور څخه ډاریږي (فرانسوی متل)

۳۸. څوک چې د پیشي ـ د ګټلو لپاره محکمې ته ځي، غوا بایلي (چینایي متل)

۳۹. ځیني خلک د بار په وچتولو کې ځکه مرسته کوي چې د بار اندازه معلومه کړي (افریقایي متل)

٤۰. مړ زمري د خره هم نه خوښیږي (جرمنی متل)

٤۱. څوک چې رانده ته مېلمستیا کوي، دوه کسان به ورځي (هندی متل)

۴۲. کوم چرگ چي اذان نه کوي هرومرو به يې مرۍ کې ستونزه وي (هسپانوی متل)
۴۳. که کپس د سرو زرو هم شي مرغه نه شي مرولی (ایتالوی متل)
٤٤. د قاضي په مخ کې ژړا د اوښکو له ضایع کولو پرته بله گټه نه لري (ایتالوی متل)
٤٥. په ځاه کې ناوړي مه تو کوه یو وخت به دي اړتیا پیښه شي (روسی متل)
٤٦. که ته تنها ځغلې نو څوک به درنه مخکې شي؟ (اثیوبیایي متل)
٤٧. که د موسکا چل دې نه وي زده، دکانداري مه کوه (چینایي متل)
٤٨. خپل مزدور ته هیڅکله راز مه وایه (جاپانی متل)
٤٩. که سوله غواړې نو جگړې ته ځان تیار کړه (لاتیني متل)
٥٠. جگړه له لیرې ښایسته ښکاري (هسپانوی متل)
٥١. حقیقت چا ته په بربنډ شکل مه وروښیه، لومړی کمیس ورواغونده (هسپانوی متل)
٥٢. پر رانده یې اوږده لکړه نه لوربري (مغربی متل)
٥٣. ښځه له واده مخکې ژاړي او سړی له واده وروسته (اوکرایني متل)
٥٤. ماهی مه راکوه د ښکار چل يې راوښيه (چینایي متل)
٥٥. څوک چې پر مځکه ناست وي له رالوېدلو نه ډاريږي (چیکسلواکي متل)
٥٦. که پیشي دي وتړله زمری ترې جوړیږي (هالنډی متل)
٥٧. د نوکر له خولې د بادار صفتونه مه منه (روسی متل)
٥٨. کله کله قیمتي شی ډېر نه ځلیږي (انگریزی متل)
٥٩. له مانۍ سره نږدې کوډله مه جوړوه (هسپانوی متل)
٦٠. زما ملگری هغه دی چې په ژړنده کې مې غنم اوړه کوي (هسپانوی متل)
٦١. څومره چې خبري لږ کوې هومره دې خلک خبرو ته ښه غوږ نیسي- (جرمنی متل)
٦٢. بندي خولې ته مچ نه ننوځي (چینایي متل)
٦٣. درواغ پښې نه لري (چینایي متل)
٦٤. حقیقت لکه سهار هرو مرو راخیژي (یوناني متل)
٦٥. اصیل هیڅکله درواغ نه وایي (فرانسوی متل)
٦٦. څوک چې پردۍ ډېوه وژني د هغه په څېر به دی هم په تیاره کې ژوند کوي (پولنډی متل)
٦٧. څوک چې له احمق سره بحث کوي ځواب به يې هم اوري (جرمنی متل)
٦٨. له ما پرته هیڅا ته معلومات نه کیږي چې بوټان مې پښې ژوبلوي (انگریزی متل)
٦٩. بې زخمونو قهرمان نشته (پرتگالی متل)
٧٠. روغتیا د هگۍ په څېر ده، که ویې نه ساتې ماتیږي (مغربی متل)
٧١. څوک چې بې ضرورته شیان اخلي له خپله ځانه غلا کوي (سوېډنی متل)
٧٢. ښایسته گلان اغزي لري (هالنډی متل)
٧٣. تر پیل یې په پای کې ډېر فکر کوه (بوسنیایي متل)
٧٤. چمتووالی د نیمایي جگړې گټل دي (هسپانوی متل)
٧٥. نرم ځواب غوسه له منځه وړي (انگریزی متل)
٧٦. د تازه ماړه شوو کولمې لا هم وږې وي (یوناني متل)
٧٧. خدای دې څوک په جنت کې هم نه تنها کوي (روماني متل)
٧٨. لنډ گامونه عمر اوږدوي (روماني متل)
٧٩. خر د بلبل په اواز څه پوهیږي (روماني متل)
٨٠. له ملگري څخه هغه څه مه پټوه چې دښمن دې پرې خبر وي (ډنمارکی متل)
٨١. د کوتک په لاس سړي هره خبره حقیقت وي (افریقایي متل)
٨٢. پردي گلان تل مونږ ته ښه سره ښکاري (جاپانی متل)
٨٣. شیطان ته د شیطان په ژبه ځواب ورکول په کار دي (هندی متل)
٨٤. هغه اور چې تا نه سوځوي مه یې وژنه (افریقایي متل)
٨٥. ښه توکی پخپله خرڅیږي (افریقایي متل)
٨٦. شات د خرو خوراک نه دی (هسپانوی متل)
٨٧. د فقیر ورځ اوږده وي (هسپانوی متل)
٨٨. خوږې خبرې لوږه نه ختموي (نارویجنی متل)
٨٩. د گران بچي نومونه ډیر وي (افریقایي متل)
٩٠. غل پر هر چا د غله گومان کوي (نارویجنی متل)

۹۱. که لیوه پسه ونه خوري بیا هم لیوه دی (منګولیایي متل)
۹۲. مور ته یې ګوره، لور یې غواړه (افریقایي متل)
۹۳. د غله سپوږمۍ نه خوښیږي (کوریایي متل)
۹٤. هغه تیره چې لاره بنده نه کړي د خند په سترګه مه ورته ګوره (ډنمارکی متل)
۹۵. توره خپل تیکی نه غوڅوي (کردی متل)
۹٦. د نورو غمونه زمونږ درد نه شي دوا کولی (پرتګالی متل)
۹۷. یوه ماهي ته لس ښکاریان د سیند په غاړه ولاړ وي (ویټنامی متل)
۹۸. بدرنګه ښځه له هنداري ډاریږي (جاپانی متل)
۹۹. چرګه او ښځه چې له کوره راووځي، ورکیږي (هسپانوي متل)
۱۰۰. تر شاه کینډلو، د لور واده کول ضرور دی (هندی متل)

# هو! ته به ماتیږې...!

صفي الله" رائد"

هغه ورځ لرې نه ده چې ته به هم د نني اوتو بوتو پر ځای د خپل شکست خبر پخپله ټویټر پاڼه ولیکې؛ امریکا به هم لکه لوټه په اوبو کې ویلې شي او ته به د اوسنیو ببولالو پر ځای په ټیټ سر د ټولې امریکا د ماتې خبرې زمزمه کوې !..انشاءالله

ترکومه به دخپلو وژل شویو عسکرو ارقام پټوې؟ تر څه وخته به پر خپلې کرغېړنې پالیسۍ امریکایي ولس غولوې او خپل شکست ورته په بریا تعبیروې؟ که یوځل په حقیقت سترګې پټې نه کړئ، نو بې له شکه چې تاسو په دې خاوره کې نورمات یئ!..

هو !دلته نور تاسو او ستاسو لاسپوڅو په پوره مانا شکست خوړلی.

هو !یواځې او یواځې یوه لاره در پاتې؛ چې باید له دې پاکې خاورې مو خپلې کرغېړنې پښې سپکې کړئ اوبس.

ډونالډ ټرمپه! باید په یاد ولرې، چې دلته تاسې اوس د سیمټي دیوالونو په مینځ کې را حصار یاست، چې په نظامي ډګر کې همدا د یو لوی شکست په معنا ده. نور باید سر خلاص کړئ !چې دلته تاسې کلابند یاست، داپه دې معنا چې راوتل مو هره ګړۍ اوهرځای د سر په قیمت تمامېږي او تمام شوي !.. دلته د غیورو افغانانو همدا دوستور دی؛) چې یرغلګر لومړی کلابند او بیا یې پر همدغو محصورو، کلابندو حالاتو کې یو یو وژني (لکه څنګه چې یې پخپلو سترګو وینئ؛ استشهادي او نفوذي مجاهدین مو د سیمټي دیوالونو پر مینځ کې هم نه پرېږدي؛

یابه دلته وژل کېږئ او یابه د سر په کرکریو کې ګرمې اوبه څښئ!

هو !دلته راتلل اسان مګر وتل د هر جابر د سر په قیمت تمامېږي !..

دلته هر مظلوم که دې هرې خاورې وي آزاد خو !هر ظالم بیا سر ایښی برباد دی؛ دلته هر جابر، ظالم د سر په بدل ګرځېدلی.

ښاغلی !ډونالډ ټرمپه!!!

که غواړې خپل سرونه وژغورئ له دې پاکې خاورې مو پښې وباسئ؛ ګنې ډېرې ککرې به کېږدئ !هو !ډېرې نورې ککرې به بایلئ!

ډونالډټرمپه!!! زمونږ تاریخ یو څو پاڼې لږ شاته وګوره، پوی به شې چې مونږ هېڅچاته هم سر نه دی ایښی، مګر راغلیو بیا همدلته زمونو په پښو کې سر ایښی. څومره چې دلته امریکایان توان لري، طالبان ترهغې څولسیزې زیات د جنګېدو توان لري؛ نو په یاد ولره؛ مونږ بې له دې چې د هېواد اشغال مو په ټولیزه توګه پای ته نوي رسولی په بل هیڅ شي نه قانع کیږو !

ډونالډ ټرمپ!

په روانو خبرو کې د اسلامي امارت کره او سمې پالیسۍ ته غاړه کېښودل به مو یوې سمې پایلې ته ورنږدې کړي؛ ښه به وي چې توافق نامه لاسلیک او خپل پوځونه په راغلې لار بېرته وباسې .

که بیا هم په خپل ناسم دریځ ولاړ یې، ودرېږه؛

لرې نه ده چې افغانان به په خپل تاریخ کې د امریکایانو د شکست ورځ هم ثبت کړي؛ ځکه ته به ضرور شکست خورې .

هو !ته به ماتېږې!! ان شاءالله



# د اتل او نومیالي شهید

# ملا محمد فهیم ناظم ژوند ته کتنه

لیکوال: عاکف مهاجر

هغه مهال چې د هلمند ځپې تازه په جوش راغلې وې او د هلمند سیند موجونه د غربي اشغالګرو او اجیرانو لپاره په شور وو د هیواد په تورو تیارو کې خای ځای څو ستورو رڼا کوله چې یو هم له هغو څخه ملا محمد فهیم ناظم وو.

د اشغال دریم کال وو طالبانو تازه خپل تیت او پرک لښکر بیا راټولولو لوګر کې وم لا مې د ژوند شپاړس پسرلي تیر شوي وو خو د جهاد مینې مې په سینه کې بلې لمبې وهلې خبر شوم یو ملګری تازه له هلمند راغلی کور یې پیښور کې وو له لوګر راوکوچیدم د پیښور په لور مې د سفر مزي راکش کړل هغه ته مې ماښام ځان راورسولو شپه تیره شوه بلا اوږدې کیسې مو سره وکړې سهار بیرته د کابل او بله شپه له کابل د هلمند په لور وخوزیدم دریمه ورځ مو یو په شایسته اخلاقو پوښلی خندنی ځوان ولید چې له عمره هم ډیر مشر نه ښکاریده په لومړي ځل یې داسې اخلاق راسره وکړل لکه د یو واقعي مجاهد سره چې ښایي، خو دا یوه ورځ نه وه درې میاشتې مو ورسره تیرې کړې هره ورځ یې له بلې ښه رویه کوله، خو کلونه وروسته خبر شوم چې هغه ګلاب ریژیدلی او نور بدې دنیا کې نشته بیا به یط هغه خندنی څیره نه وینو، دغه زلمی ملا محمد فهیم ناظم د هلمند اتل وو.

**پیژندنه:**

د جهاد او مبارزې اتل نومیالی غښتلی او پیاوړی مجاهد، د ثبات او استقامت غر، د وفا، صبر او ریښتینولۍ نمونه ملامحمد فهیم ناظم د شهید محبوب اکا زوی د هلمند کجکي اړوند په زمینداور کاریزنو کلي کط دې فاني نړۍ ته سترګې وغړولې.

**زده کړه:**

شهید ملا محمد فهین ناظم لومړنی زده کړې د خپل کلي له ملا امام څخه وکړې وروسته یې د والد صیب شهید محبوب اکا د علم او علماء سره د بې کچې مینې له امله د هلمند لښکرګاه مفتاح العلوم مدرسې ته ولیږلو او هلته یې په زده کړو پیل وکړ چې وروسته د منځنیو زده کړو لپاره د هجرت دیار پاکستان د کویټې ښار ته لاړ او هلته یې په ګڼو مدارسو کې له مشهورو استاذانو څخه خپله علمي تنده خړوبه کړه.

شهید ملا محمد فهیم ناظم په طالبي دوره کې یو ممتاز او تکړه طالب وو په ذهانت او پوهه کې یې شهرت درلود چې له همدې امله به له هغه څخه د کښته کتابونو زده کړیالانو طالبانو پرې درسونه ویل. هغه تقبله الله یو دینداره، متواضع، امین او صادق شخصیت وو.

مشهور استاذان د نوموړي شهید شیخ مولوي محمد عیسا اخند او شیخ مولوي عبدالهادي اخند وو.

**جهاد او مبارزه:**

کله چې امریکایي اشغالګرو په افغانستان حمله وکړه شهید ملا محمد فهیم ناظم له جهاد، سرښندنې، شهادت،

ازادۍ او خپلواکۍ سره د مينې له امله د هغوی په وړاندې په هغه لومړيو کلونو کې په جهاد او مبارزه پيل وکړ.

شهيد ملامحمد فهيم ناظم تقبله الله د اشغال په دوهم کال هغه مهال چې د غربي تاړاکګرو زور او رعب زيات وو طالبان لا نه وو منظم شوي د هلمند په زمينداور او ارزګان په دهراوت کې يې د خپلو ملګرو شهيد ملا عبدالباري اخند، اسير ملا عبدالنصير اخند او نورو ملګرو سره يو ځای وخت ناوخت بريدونه کول چې همدا د غربي يرغلګرو په وړاندې د مبارزې سخت کلونه وو.

هغه تقبله الله ما ليکوال ته يوه ورځ کيسه کوله چې له جهاد او درس دواړو سره مې زياته مينه وه دواړه راته عبادت او له اسلامي اړخه او مسلمانانو لپاره مهم بريښيدل چې همدې حيران کړی وم چې کوم يو انتخاب کړم خو د جهاد د زيات اهميت له کبله راته هغه غوره ښکاريدلو خو بالاخره مې استخاره وکړه چې د شپې مې رسول اکرم ﷺ په خوب ليده او خوږه حلوا يې راته په رغوي کې واچوله چې ما هم ټوله وخوړله او له هغه وروسته مې په هغه صبا کتاب کت او جهاد ته مې ادامه ورکړه.

د نوموړي شهيد د زياتو اتلوليو له امله کله چې د افغانستان د اتلانو سرخيل او د کفري يرغلګرو قاتل او د سترګو خار شهيد ملا دادالله اخند تقبله الله خپل بخواني قومندان شهيد ملا بلبل قلندري تقبله الله څخه غوښتنه وکړه چې يو ځل بيا خپل ملګري راټول او د جهاد سنګر ته راودانګي هغه ورته دا شرط ولګولو چې بايد شهيد ملا محمد فهيم ناظم تقبله الله به له دهراوت راولي او هغه به راسره همکار او ملګری وي چې د هغه به توګه به وکولی شي جهادي چارې په ښه توګه پرمخ يوسي.

### کارنامې:

د شهيد ملا محمد فهيم ناظم کارنامې له شمار وتلې دی خو يو څو يې د بيلګې په توګه درته يادوم.

کله چې د امريکايي يرغلګرو رعب او دبدبه په لومړيو کې زياته وه او خلکو يې پر وړاندې له هغوی سره جګړه له غره سره سر وهل بلل نوموړي شهيد د ارزګان ولايت په چهارچينو ولسوالۍ کې پر امريکايي اشغال ګرو ځواکونو يې مخامخ حمله وکړه چې ګڼ شمير امريکايانو ته يې مرګ ژوبله واړوله.

همدا راز يې د يو بريالي تکتيک او خپلې زيرکتيا له امله په يو خاص تکتيک د کابل پلچرخي د کرغيړن زندان څخه ۷ تنه مجاهدين بنديان چې يو پکې مهم طالب قومندان ملا نقيب اخند او ورور يې ملا غلام اخند هم وو ازاد کړل.

د نوموړي شهيد په کارنامو کې د هلمند بغني ولسوالۍ فتحه يو بيسارې اتلولي بلل کيږي چې د کفارو له ټول زور سره يې د اشغال په څلورم کال د هغوی له تسلط څخه بشپړه ولسوالۍ ازاده کړه.

### زخميتوب:

شهيد ملا محمد فهيم ناظم د زمينداور په کمربند کې له يوې سختې جګړې وروسته ټپي شو چې دښمن يې د نيولو هڅه وکړه خو نامراده دښمن په خپلو هڅو کې ناکام شو او هغه تقبله الله خپلو ملګرو د جګړې له ميدان و ويستلو، چې پر دغه ورځ د جګړې به ډګر کې د څو تنو امريکايي عسکرو جسدونه هم پاته وو او ګڼ شمير سامان او الات يې هم غنيمت شول.

### شهادت:

شهيد ملا محمد فهيم ناظم د ۱۳۸٦ کال د جوزا مياشتې په ۲٦ نيټه د چهارشنبې پر شپه د يوې چهاپې پرمهال د خپل پلار او يو ورور سره يوځای د شهادت جام نوش کړ.

د يادونې وړ دی چې د نوموړي شهيد يو بل ورور هم د شهادت جام نوش کړی چې پدې توګه درې وروڼه او يو پلار يې شهيدان شوي دي او دا مهال يې پنځه وروڼه ژوندي دي چې ټول د اسلامي امارت په ليکو کې د يرغلګرو پر خلاف په وسلواله مبارزه کې برخوال دي.

# جلال او حقانیت په ازمونونو کې

سعد کټوازی

تېر کال د محرم الحرام د میاشتي پر۴مه اسلامي امارت د ستر نووښتګر او مبتکر علمي، دَعَوِي، جهادي او سیاسي شخصیت مولوي جلال الدین حقاني رحمه الله د مړیني په اړه رسمي اعلامیه خپره کړه چې همدا شپې ورځې لا هم په رسنیو کې لاس په لاس کېده، هوا! د هېواد په کېڼ ختیځ کې د لویې پکتیا هغه دنګ غر راپرېوت او ونړېد چې د نړدې نیمې پېړۍ طوفانونو اوسېلابونو ته ولاړ و، نه ورته په ملا خم شو، نه له خپله ځایه وښورېد او نه هم وښویېد، پر عالم کفر خو دا ځکه د خوښۍ ورځې وې چې په خیال یې هغه لوړ غر یې له مخې آخوا شو چې پر سر یې لاره هم نه لرله، خو حاشا وخلا.

جلال زموږ له تعبیر او د تعبیر له ټکو ډېر هسک مفهوم دی، ورسره حقانیت بیا زموږ له پوهې لېرې تل ته پروت یو ژور حقیقت دی چې دا هم في الجمله زموږ د تعبیر له مستوی ډېر لوړ مفاهیم را نغاړي، بل دا چې لکه په ځینو کتابونو کې به مو لیدلي وي نوم د سړي پر شخصیت درووند اغېز پرېباسي چې ډېرو خلکو به دغه حقیقت درک کړی هم وي.

نو که یو څوک د دین پر لوړوالي/ پر دین کې لوړوالي (جلال الدین) و نومول شي او بیا یې روحاني پلار او علمي مور ته نسبت (حقاني) دوهم نوم وګرځي، ورسره هغه هر وخت په هر څومره سنګینو شرائطو کې د حق اړخ پر نېولو، د یوې سپېڅلې او حقي داعیې پر لرلو، له هغو څخه پر ټېنګه او نه ماتېدونکې ننګه او ترې د سر او مال په قربانیو (متناً و شرحاً) و پېژل شي، نو ښکاره خبره ده چې جلال او حقانیت یې پر شخصیت ژور اغېز ښندلی او تبیعي ده چې موږ یې په ستاینه کې پاتې راشو.

که د مرحوم حقاني صاحب یواځې جهادي ژوند لا له موږ مشر.او هغه مو د خپل ژوند په هېڅ برخه کې له نږدې نه پېژاند، خو د هغه اړوند مو له مشرانو ډېر څه اورېدلي او د هغه په اړه لیکلي تأثرات مو لوستلي دي، لومړی خو حقاني صاحب د خپل کریزماتیک شخصیت پر اغېز د خپل اوږد عمر پر معاصرینو او هغه چا ته ځان پوره ور پېژندلی و چې لېده کاته یې ورسره شوي چې دا د هغه د شخصیت متن ګڼلای شو، او بیا یې همدغو معاصرینو او چا چې هغه لیدلی دغه متن یې بشپړ تشریح کړی نور څه نه دي پاتې چې موږ ته د هغه د لازیاتې ستاینې سوژه او خام مواد شي.

دا د دې لامل هم شوی چې اوس مو پوره پوهې ته پرېوتې هغه زموږ ستاینو ته هېڅ اړ نه دی، نو د هغه د ستاینې په دود د څه ویلو جرأت هم نشو کولای، هوا! د اړتیا او جرأت نشتوالی په همدې دود، خو.... خو د حقاني صاحب د یاد ژوندي ساتلو، پر ځان یې په اړه د تأثر د حق او غرامت منلو په دود او له خپل اند سره سم د نوي نسل او د ملت ځواني انرژۍ ته د مشرحقاني صاحب د تګلاري او تګلوري مشال پر نویو ټکو او نوي تعبیر رڼا او روښانه کولو په موخه به لاندې څه و وایو، خو د تقَوُّل او مبالغې له جملې هم نه چې څلاند تاریخ ته یې زیان رسوو، بلکي پر څه باندې چې هغه جلال او حقاني و له همغه څخه رښتونی تعبیر یې زموږ د ستاینې ټکي هم دي او دا به په حقیقت کې د تاریخ پر ژبه د هغه ستاینه وي.

د وخت پر وتو هرڅه خپل رنګ بدلوي (څه یې اصلي حالت هم پېکه شي) او له نوي رنګ سره رامنځته کېږي چې بیا تېر او ډېر پخواني هغه تقریباً ذهني معماګانې او خیالي افسانې برېښي، موږ ته د خپل اسلامي تاریخ او سیرت په مطالعه کې نامتو اشخاص خالد بن ولید، عامر عبیده بن جراح، طارق بن زیاد، عقبه بن عامر، سلطان صلاح الدین ایوبي، سلطان نورالدین زنګي، قتیبه بن مسلم، محمد بن قاسم، محمود غزنوي، احمد شاه ابدالي او... مخې ته راځي، خو یو خوا د دوی کېسې ډېرې عجیبې او راته افسانې ښکاري بل خوا بیا د دوی شخصیت، کړنې، د ژوند اړخونه او... مو هم له نږدې نه وي لیدلي په اړه یې قضاوت راته ډېر مشکل وي، خو که د حقاني صاحب په څېر د خپل وخت او نږدې ماضي لوړ اشخاص وپېژنو تقریباً هغه ټولې ځانګړنې یې په نوي او زموږ معاصر رنګ لرلې او په عملي او مجسم ډول یې راته تفسیر کړې چې له دې وړاندې تاریخ یواځې د یادو پخوانیو نامتو هغو په نوم ثبت کړې وې.

که د حقاني صاحب په اړه له ژور تحقیق او د هغه د شخصیت له اوږدې تشریح څخه راتېرشو او لنډ و وایو هغه همدې دوو (جلال، حقانیت) نومونو جوړاوه، دا دوه مفاهیم د هغه په شخصیت کې اغښل شوي او بیایې جلال په حقانیت کې نغښتی و، دا دواړه مفاهیم د جلال له لوړي څوکې د حقانیت تر وروستي تله یو لوړ معیار او بلها/بلا غوښتنې لري چې حقاني صاحب بشپړي ور پوره کړې وې او پرې د جلال او حقانیت عملي خاکه یې وړاندې کړه.

نور خو جلال له وړوکتوبه لا جلال و چې لاهم یې د پلار په خدمت کې د انبیاؤ په پله د شپونکي چوپړ ترسره کاوه، خو اړ تیا د یو داسي څه وه چې د هغه په اثر د جلال مانا ورکې پیداشي او په معنوي لحاظ جلال شي، هغه و چې الله تعالی تقریباً په بشپړه مانا حقانیت ور وباښه.

په شا وخوا لس کلنۍ کې یې لومړنۍ زدکړې پیل کړې، د خپلې لویې پکتیا (اوسني ګردېز او خوست) ترڅنګ وردګ، غزني، پکتیکا او له ګاونډي هېواد پاکستان سره په ګډه پوله پرتو سېمو کې یې لومړنۍ او منځنۍ زدکړې ترلاسه کړې، د غزني له نورالمدارس مدرسې د لوړو زدکړو لپاره د اسیا ستري جامعې (دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک) ته لاړ، پرلپسې یې څلور کاله هلته تېر کړل او په۱۳۹۱ سپوږمیز کال یې د جامعې د بنسټګر مولاناعبدالحق، مولانا مفتي محمد فرید زروبوي او مولانا عبدالحلیم رحمهم الله په لاسونو د علمیت پګړۍ وتړله، خپل استاد مولانا عبد الحق او علمي مور دارالعلوم حقانیه ته په منسوب کېدو یې حقاني نوم خپل کړ.

د حقاني صاحب د (کریم الخصال، مرضی السیرة، زکي القریحة، صاحب العقیدة الراسخة لدیه قدرة تامة علی تدریس العلوم الشرعیة) ځانګړنو د هغه د عالمیت سند هم له نورو ځانګړی او لوړ کړ، او بیا که څه هم د جامعې کړنلاره دا نه وه چې د خپلو نویو فارغانو له جملې دې څوک هلته استاد شي خو همدغه ځانګړني وې چې د جامعې د مشر.مولانا عبدالحق رحمه الله په ټېنګار حقاني صاحب همهلته تدریس پیل کړ، چې دا یې یو بل دنګ اعزاز او امتیاز شو، هلته یې په همدې لومړي کال مختصر. المعاني، دېوان حماسه، شرح تهذیب، شافیه او ځېنې نور کتابونه درس کړل.

د راتلونکي لپاره جامعې په پام کې درلودل چې له دې لور کتابونه ورکړي، خو حقاني صاحب چې په هېواد کې سر راپورته کړي الحاد ډېر اندېښمن کړی و له جامعې یې معذرت وغوښت او د ځمکې له لارې حج ته لاړ، ورسره یې د افغانستان په ګډون د اسلامي نړۍ بېلابېلو هېوادونو له عالمانو، شیوخو او د اسلامي فکر لوړو اشخاصو سره په هېواد کې رابوتېدلي الحاد په تړاو هر اړخیز بحثونه وکړل، د هغوی نظرونه یې واخېستل او همدا یې د دعوت، اصلاح، مبارزې، جهاد، سیاسي هلو ځلو، د ټولني خدمت او په دې لاره کې ایثار او فداکاریو پیل و.

پر ۲۰م زېږدیز پیر چې په روسیه کې کمونستي واک رامنځته او کمونېزم سر راپورته کړ، ولسونه او ملتونه د هغه له دهري فلسفي سره بشپړ نابلد و، نو پر چټکۍ یې د منځنۍ اسیا، ځینې عربي هېوادونو او چین په ګډون نیمې اروپا پوري ساحه لاندې کړه، افریقا او د عربو جزیرې (جزیرة العرب) ته یې ریښې وکړې او په دې ډول یې نړیواله پراختیا وموندله، ناټو او امریکا هم ورکې سترګې نشوای ښخولای، خو ترټولو زیات یې اسلامي نړۍ وېجاړه او له بېخه ونړوله، له نوري اسیا وروسته له ټولو شاته پاتې خو د اسلامي عقیدې له اړخه بډایه افغان خاوري او افغان ملت وار و.

دا نو ترټولو له ازمون ډک پړاو و چې د واکمن شاهي نظام مهمو ادارو (پارلمان، پوځ، معارف، فرهنګ، ټولنیزو چارو او...) ته د هېواد بیا رغوني او دلته رفاه منځته راوړلو په نوم د کفر او الحاد پر بنسټ ولاړ کمونیزم پر چل او چالاکۍ لاره وموندله، د نظام دستګاه، سیاسي روڼ آندي، فرهنګي فعالیتونه، اداري چاري یې ټول تري د ځان تسخیر کړل او افغانانو ته یواځې هغه دین او دیني عالمان ورپاتې شول چې وروسته همدې کمونېزم او د هغه روزل شویو کورنیو کمونستانو ورپسې را واخېسته.

خو د حقاني صاحب په څېر همدغه دیني عالمان و چې د شاهي نظام له وخته او هېواد ته د کمونیزم له را واردېدو مخکې یې د هغه پر وړاندې د افغان ولس په وېښتیا او ذهن سازۍ ډېر کار وکړ، همدا د کمونیزم له اشغال شویو هېوادونو سره د افغانستان یواځېنی توپیر و، له حج څخه له راستنېدنې سره سم یې دلته هم د دیني عالمانو او ولس په ملاتړ د کونیستي فکر ضد لویې غونډې جوړې کړې، له منبره یې غږ پورته کړ او له هري ممکني لارې یې له کمونستي فکرڅخه د اغېزمنو د اصلاح او پوهاوي هڅه وکړه، که څه هم کمونستانو او درباري ملایانو پرې د هېڅ ډول الزام څخه دریغ و نکړ خو حقاني صاحب او ورسره دیني عالمانو دا هرڅه پر ځان ومنل أمَّا د کمونېزم پر وړاندې د ملت له بیدارۍ څخه نوک هم پر شا نشول.

دلته چې د داؤدخان سپېنه کودتا رامنځته او کمونستان پکې لوړو پوستونو ته ورسېدل، هم یې همداسي دوام ورکړ، خپله وجېبه یې په ښه ډول ترسره کړه او ترڅنګ یې حقاني صاحب، مولوي نصرالله منصور صاحب، مولوي عزیز خان، مولوي احمدګل او... د یو خوځښت په بڼه د کمونستي فکر عملي مخالفت او پر وړاندې په پکتیا او ځینې نورو ولایتونو او سېمو کې فعالیت هم پیل کړ.

حقاني صاحب او ورسره دیني عالمانو د ولس او ځوانانو د وېښتابه او امادګۍ کار بشپړ کړی و او د لوی خوځښت لپاره یې پوره تیاری درلود ډېر زیات شمېر مجاهدین یې پرځان راټول کړي و، چې د ثور کودتا له لاري واک د کمونستانو لاس ته پرېوت، د هغوی له لوري خونړۍ پېښې رامنځته شوې، د دیني عالمانو وژنه، نېول او برمته کول یې پیل کړل، او شوروي هم مخامخ یرغل وکړ، د کمونستانو پر وړاندې د حقاني صاحب او نورو عالمانو د تېرو هڅو په اثر اوس د دوی تر مشري لاندې په ټول هېواد کې سرتاسری ستر قیام وشو، له تمې او توقع لوړ هر اړخیز کلک مقاومت یې ورسره وکړ او ۱۴ کاله یې له هیڅ راز قربانیو نه پکې دریغ وکړ، نه پر سترې شو او نه یې هم همدغه موده د ارام خوب وکړ ترڅو شوروي په افغانستان کې مات شو.

بل ازمون د خپل منځي جګړو پیل و، له بده مرغه د۱۴ کاله دغو کاوشونو او خواریو وروسته هغو ډلو چې د جهاد پر وخت جوړي شوې وې ترخپل منځ د واک پر سر یو له بله جګړې پیل کړې چې مشهوري څیري یې احمدشاه مسعود، برهان الدین رباني، ګلبدین حکمتیار، عبدالعلي مزاري، تورن اسماعیل خان، استاد سیاف او... ول، د تېر جهاد ارمانونه یې له خاورو سره خاوري کړل، بېرته یې له کمونستانو سره ښکاره او پټې معاملې پیل او امتیازات تري واخېستل، په هېواد کې ملوک الطوائفي خوره شوه، کابل تر ټولو نورو ښارونو زیات وران شو، هر لور ته قتلونه، شوکې، اسارتونه و، فساد او انارشېزم، ټوپک او پاټک سالارۍ او....

حقاني صاحب چې لا د جهاد له وخته د مجاهدېنو د سیاسي ډلو او ګوندونو جوړېدو پلوی نه و (د وخت شرائطو د خالص بابا د حزب غړیتوب ته اړ کړ، بیا یې هم د حزب مرستیالۍ ته شا او د مقاومت په سنګرونو کې د لومړیو کرښو قومانده پرمخ وړله) اوس یې هم پر خپل ټول توان د دوی ترمنځ د پخلاینې، یو والي او د جهاد موخو او ارمانونو ته د ټولو د تعهد او وفادارۍ هڅې او هاند وکړ، هرڅومره یو او بل ته پر جرګو ورته خو هغوی که څه هم په خوله به یې منل خو له زړه یې د اقتدار نشه او له یو او بل څخه د غچ اخېستو اراده نه وته، بلکې لا د حقاني صاحب د غه هڅې یې هم نه خوښولې دسیسې یې ورته جوړې او بریدونه یې پرې ترسره کول، ترڅو له کندهاره د طالبانو خوځښت را پورته شو.

دا چې د حقاني صاحب په څېر رښتونو مجاهدېنو هر وخت د ستونزو سوله ابزې هوارۍ ته پر جګړه ایز حل لومړیتوب ورکړی، نو دا یو عجیب تصادف و چې د هغه سوله ابزو هڅو او خواریو کار ورنکړ سمدلاسه له همدغې داعیې سره یو ناڅاپه د ملا محمدعمر مجاهد په مشرۍ د طالبانو اسلامي تحریک او د دې ستونزې جګړه ابز حل رامنځته شو، ښایي حقاني صاحب به یې خیال هم نه وکړی او خپله خوښې له سوله ابز حل پرته له دغو ډلو سره د جګړې نیت ښایي بېخي نه وي درلودلی، ځکه په دې سره به هغه او ډله یې هم د نورو په سترګه کتل کېدل، په داسي حال کې چې هغه له پیله د نورو ترمنځ ډله بازۍ لا نه خوښوله چې اوس بیا پر نورو خپله ډله هم ور زیاته او خوست، پکتیا او پکتیکا هم د کابل په څېر وران کړي.

دا چې د حقاني صاحب پر سوله ابزو هڅو ونشوه او د جګړې نیت هغه نه درلود، الله تعالی له هغه بل لوري له همدغې داعیې سره چې حقاني صاحب لرله د طالبانو جګړه ابز تحریک راپورته کړ له شک پرته د هغه د دغو هڅو پر ملاتړ د الله تعالی را رسېدلی یو ستر نصرت او د هغه د حقانیت یو غوره دلیل یې ګڼلای شو، خو دا هم په پوره یقین د طالبانو له تحریک سره د الله تعالی له لوري یوه لویه مرسته او غښتلی نصرت و چې د حقاني صاحب په شان یو حقاني عالم، ستر ماهر جهادي لېډر، تر خپل منځ سره نښتو ټولو ډله بازو څخه غښتلي شخص د یاد تحریک لومړي غږ ته لبیک کړل، بشپړ ملاتړ یې تري وکړ، خپل شته یې ټول په واک کې ورکړل، تر پایه یې خپل مسیر بدل نکړ او...

یو بل ازمون هم د امریکا یرغل و، د حقاني صاحب کور، د خوست په متبه چېنه کې مدرسه او ګڼ نور د مجاهدېنو استوګنځي یې یرغلګرو بمبار کړل، د مسافرو مجاهدېنو په ګډون د کور غړي یې هم پکې شهیدان

شـول، د هېواد د نـورو مجاهدينو په څېر حقـاني صاحب هـم خونـدي ځايونو ته ځان او ملګري ورسول، دا چې زياتر مجاهدين سره تيت وپرک شـوي و، ترڅنګ يې دښمن هـم چې څومره و د هغـه دوه برابره تبليغاتي هـوا پرسـولی او د يـو بـالون غونـدې ډېـر لـوړ کـړی و، نـو د يـو نـوي او پرمختللي ډول مقاومت اړتيا محسوسېدله.

حقاني صاحب يې په خپل نووښت او ابتکار په ډېر لږ وخت کې چاره و موندله، امکانات چې د صفر په درجه کې و مقاومت يې هـم لـه همغـه صـفر څخـه را پيـل کـړ، د امکانـاتو لـه نسـبي زياتېـدو سره کـرار د جګړې ګراف لوړېده، د هغې نوعيت او څرنګوالي استشهادي بريدونو، لويو بمي چاودنو، يرغليزو بريدونو، کمېنونو، مخامخ بريدونو او تعرضونو تـه تغـير او تـوپير وکـړ، د دې ټولـو او پـه ځـانګړې د يـوېزو او ډلـه ابـزو استشـهادي بريـدونو په طرحـه او بيا تطبيق کې حقاني صاحب د غـوره جګـړه ابـزو مهـارتونو، ژورو تجربـو، خـدای ج ورکـړې ځيرکتيا او بريـاليو تکتيکونو پر مټ تر ټولو ښه و ځلېد، پر آفرين.

حقاني صاحب چې لا له وړاندې يې د راخپلو کړو زړونو سودا له ډله بازانو سره کړې وه د داسي چا زړونـه يې هـم لـه ځان سره لـرل چې د خپـل شخصيـ جګـړه ابـز تفـوق ترڅنـګ د بېلابېلـو غښـتلو وړتيـاو داسي پـوځي ماهرين يې لـرل چې پر کمو امکاناتو د جګړې بشپړ نـوی او داسي اسـلوب رامنځته کړي چې د يرغلګرو د نوې ټېکنالوجۍ پر وړاندې يې اړتيا وي، بلکې لا زيـات او لـه تـمې لـوړ پـر دې چې يـاده ټېکنـالوجۍ کـه څـه هـم دومـره پرمختللې نه وه لکه چې تبليغ شوې وه، خو مجاهدينو يې له هغې سوبې سره برابر مقاومت ته تابيا او چمتوالي و نېوه چې تبليغاتو ښوده او په دې سره د هغـوی وړتيـا تـر لوېدېځـه ټېکنـالوجۍ لـوړه شـوه، دلتـه پکې حقـاني صاحب خپل اولادونه هم د خپل مزاج سربېره پر هغو استعدادونو وروزل چې د دې پرمختللې ټېکنالوجۍ په وړاندې يې حياتي رول درلودلی دی.

په دې برخه کې د چاودېدونکو توکو او له هغو د ماينونو په نوي پرمختللي ډول جوړول، د دودېزو وسلو اغېزمنه کارونه، د نويو جګړه ابزو تکتيکونو رامنځته کول، مجاهدينو ته پوځي تدريبونه او تمرينونه ورکول، د بريدونو کره او دقيق پلان، کمپيوټري نقشه ګذاري او نقشـه ښـودنه، ډرون ټېکنالوجي، استشهاديانو ته د بريدونو په جريان کې د استادانو او په ځـانګړې د شـهيد بدرالـدين حقـاني د مخـابروي اړيکـو لـه لاري تناسـبي لارښوونې او قوماندې او... هغه څه و چې دغه مقاومت پرې پرمختللی و ګرځېد او د بريا ترپولې يې ورساوه چې دا دی لـه نېکـه مرغـه د شـوروي اتحاد نوم روسيې ته له را پرېوتو وروسته صليبي اتحاد هم د امريکې پوچ او ډنګر نوم ته راټيټېدونکی دی.

که د اشغالګرو له نوې ټېکنالوجۍ، زور او زر سره موږ نابلد او پر تبليغاتي پرسوب يې تېر وتلي و، نو په وړاندې يې د حقاني صاحب مبتکر او نوښتګر رول ته هم موږ او هم اشغالګر ګوته په غاښ پاتې و، د هغه جهاد څو برابره هېښونکی ايثار يې په دې جهاد کې لرلی دی، نوموړي که په هلته ځان او د عادي وګړو په حيث ورونه، وربرونه، خوربيونه او خپلوان سختو شرائطو ته وړاندې کړي و، په دې جهاد کې يې د وخت هغه نومیالي او پر لوړو ابتکارونو پوښلي د زړه ټوټې اولادونه وړاندې او ځار کړل، چې ستري حماسې يې د نوې غربي ټېکنالوجي د زوال پرلپسې زېږي شـول او هـم د غـربي تـاراک د بشـپړي مـاتې پېلامـه، او پـه ټولـه کې حقاني صاحب د قربانيو لوړې مقام ګټلی دی.

حقاني صاحب چې جلال او حقانيت يې په دغو ازموينو کې بشپړ څرګند شـول د هېواد د تېري نږدې نيمې پېړۍ روښانه تاريخ بنسټګر يې بللای شو، په ياد تاريخ کې د کمونيزم، شوروي، امپرياليزم/صليبي اشر او د دوی ترمنځ د فساد او انارشۍ پر وړاندې جهاد او مبارزه هـر يوه کې په خپل نوم يو زرين باب لري.

حقاني صاحب چې د امتحان او ازمون په مرحلو کې کومې شاهکارۍ او حماسې درلودلې، په خپل دغه دَعوي، اصلاحي، ټولنيز، سياسي او جهادي ژوند کې څومره چې وځلېد او پر کومو ځانګړنو وپېژندل شو که په لنډو تکو يې و وايو هغه يوه انقلابي څېره وه، د بريالي سياسي حاکميت حياتي عنصر يې درلود، د يو تخليقي او انقلابي ځواک څښتن وه، تل يې فکر د ستونزو په پايلو و، د ټولنيزو او سياسي ستونزو د له منځه وړلو پيـــاوړې وړتيـــا او ځـــواک يې درلـــودل، د معـــاصرو ســـياسي احساساتو/حساسيتونو او قطبونـو د مشرۍ ذهـني تـوان او نـورو تـه د قناعت ورکولو غوره ملکه يې لرله، الله تعالی ورباندې د مشرۍ يوه داسي جذابه، کشش ور کونکې، مهمه او آني لوړه وړتيا پېرزو کړې وه چې په مټ يې له نږدې او ليري د هري طبقې خلک پرځان راټول کړي و، په پښواني جهاد کې د خلکو را خپل کړي زړونه يې له ځان سره کړل او بيا يې د روان اشـغال پـه وړانـدې هـم لا ډېـره ګټـه ورتـه ورسـېده، خـو د هغـه وخـت د خلکـو مرسـتې يې ډلـه بـازانو او پـه ځـانګړې سـياف او حکمتيـار تـه ور پرېښودې.

حقاني صاحب دلېدرشيپ ځانګړې کوالټي لرله چې د خلکو پام پرې ځانته واړوي، هغوی هم ورته په فوق العاده نظر کتل، خود بخود يې د هغـه اطاعـت کـاوه، لـه هغـه سره يې وفـاء او تعهـد ښـودل او پـه سـتونزمن حالـت کې پـرې راغونډېـدل، د مسـلمه امـت پرځوانـانو کې د جهادي روحيې راوېښول او پرهغې باندې روزل يې يوه بله ځانګړنه وه، هغه د تاريخ په يوه ځانګړي مقطع کې راښکاره او د هغه جوړونکی شو.

حقاني صاحب که د جيد عالم، ستر داعي، پوخ سياستوال او ماهر مرکچي ماسټري خو په جهاد او جهادي ابتکارونو کې يې دکتوراه لرله، له شرائطو سره په سمو امکاناتو د جهاد او مبارزې د تکتيکي اسلوب مجدد او موجد شخص و، هغه يو شخص نه بلکې يو بشپړ جهادي فکر او مکتب و چې د دې لاري لاروپان ترې پر سالمه تربيه خپله تنده خړوبه کړي.

حقاني صاحب د ثبات او استقامت يوه بې ساري نمونه وه، د هر ډول ازمېښتونو مراحل يې په پوره بريـاليتوب رالنـډ کـړل، د هغـه دغـه مواهب او ابتکارونه د من وراء حجاب او پردې شاته له الله تعالی سره د ښې معاملې (صبر، اخلاص، توکل، ټېنګ باور، تعهد او...) زېږنده و، هغه له خدای پاک څخه له وېرېدونکو رښتونو عالمانو څخه و، د ژوند په ټولو برخو کې تقوا او پرهېزګاري يې ستره نښه او د هغې حق يې پر ځای کړی وه، د هغه نظر هر وخت د الله تعالی پر ذات او د هغه پر پرېکړو و، ماديات سره له دې چې پربمانه الله تعالی پر پېرزو کړي و خو هغه پرې هيڅ نظر او باور نه لاره، له همدې أمله يې ساده ژوند درلود او د ژوند ټول اړخونه يې بشپړ ساده و.

مشر-حقاني صاحب د خپل ژوند په هـر اړخېزه کړنلاره حقانيت رښتونی او داسي نغد تفسير کړ، په خپله مېړانه، سرښندنو او اتلوليو يې د استشهاد فکر بياځل را ژوندی کړ، د يو ستر هدف پرلور يې د ستر په حيث پـر خپل ژوند لا ستري قـافلې رهبري کړې چې ځيني رسېدلي او ځيني نوري لا هـم رواني دي او همـداسي بـه يې مېړانـه او اتلـولۍ ژونـدۍ وي، دوام به مومي، د حقانيت روح او د جهاد فکر ته به وده ورکوي او هغه ته به تلپاتې ژوند ور ببښي. روح يې ښاد لو ياد يې تل پاتې.



# د دریو اتلانو ورونو همسنګر او د پلار څلورم ځوی هم شهید شو!

لیکوال: مهاجر

د پل عالم له پول سره د پوستې په څومترۍ کې هغه مهال تیر شولو چې د ولایت له لوري ټانګونه هم د کابل ګردیز پر لویه لار راباندې راتیر شول مونږ په سراچه ډوله موټر کې وو همداسې د غره یو اړخ ته د اونۍ سیدان لور ته رهي شولو څو دقیقې مو مزل وکړ یو پمپ مخې ته راغی موټر مو ورتاو کړ تیل مو واچول همدلته مو درې جنتي له ښکلا ډکې څهرې ولیدلې هغه څوک چې په لیدلو او ورته کتلو یې مینه نه ماتیدله جذابې څهرې یې وې انسان یې خپله مینې ته هڅولو یو یې کبره پګړۍ وهلې وه او دوه نورو یې له سر دسمالونه تاو کړي وو چانټه په غاړه او ټوپک یې پر ښنو اینښي وو پوشتنه مو ترې وکړه ایوبي به چیرته پیدا کړم څو نعرې یې پرې وکړې خو دا چې هغه لرې وو غږ مو نه سره رسیدلو د هغه په نه پیدا کیدلو یې ښښنه وغوښته مونږ هم ورته و ویل چې څه خبره نه ده خدای جل جلاله مو وبښه،

له څو خبرو وروسته مو ورسره خدای پامانتیا وکړه مخکې لاړو ملګري راته ویل دا د غره پر سر د لوګر ولایت د امنیت ریاست محافظتي پوسته ده چې څه وخت وړاندې طالبانو ونیوله دوی کښته نه شي راکښته کیدلی دلته څلرویشت ساعته طالبان ازاد ګرځي او حکومت هیڅ رفت امد نشي کولی.

وړاندې لاړو یو جومات کې مو د مازدیګر لمونځ وکړ له لمانځه وروسته بیا روان شو چې لږ لاړو ګورو مجاهدین ولاړ دي مونږ هم ورکشته شولو چاسره مو چې کار وو د طه مولوي صیب په نوم همدلته مو پیدا کړ روغبړ مو وکړ لږ ودریدو د ماشام اذانونه یې وکړل جومات ته ننوتلو لمونځ مو وکړ له لمانځه وروسته چې له جومات رابهر شولو دوه درې نور ملګري هم ولاړ وو چې په لیدلو یې سړي ته خدای وریادیدلو او د مجاهد مینه پرې ماتیدله په دوی کې یوه خاموش سنګینه او ارام انسان د ابو لیث مستعار نوم باندې یو تن هم وو کوم چې به لیدلو یې ذهني ارام سړي ته حاصلیدلو چا چې درې تنکي ورونه د اعلاء کلمة الله لپاره قربان کړي وو او د هغوی ټوپک یې پر ځمکه نه بلکې د یو ریښتوني وارث په توګه د غربیانو او د هغوی د زیره خورو په وړاندې راخیستی وو او خپلې اوګې ته یې اچولی وو چا چې د باګرام کرغیړن زندان هم تیر کړی وو خو عزم یې نه وو مات شوی بلکې نور یې هم له صلیبیانو سره کرکه ډیره شوې وه.

بوتل مو راواخیستل همدلته مو وڅکل لږه شیبه ولاړ وو وروسته په موټرسایکل درې نفره سپاره شولو څه شیبه مو مزل وکړ یو کور ته ورسیدلو ښه میلمه پاله او درنه کورنۍ وه ډوډۍ مو همدلته وخوړله وروسته بیا روان شولو د شپې ترتیب مو وکړ ابو لیث او یو بل ملګری پیاده روان شول مونږ بیا پر موټرسایکل سپاره شولو ښایسته ټوټه مزل مو وکړ یو ځای ته ورسیدو د شپې له ځای لږ لرې مو موټرسایکل ودروو او همدلته مو بند کړ غلي غلي روان شولو ډرون ګرزیدله د چورلکو غږ هم راته مخابره کې غږونه ول چې چاپه ده ملګري باید بیدار اوسئ یو کور ته ننوتلو شیبه وروسته ابو لیث او بل ملګری هم راغلل د کور والا چای راووړ چای مو وڅکلو دوی پیرې ته پورته شول مونږ ویده شولو شپه تیره شوه سهار مرکز ته لاړو چې ګورو یو شهید د مرکز په انګړ کې ایښی وو قدمونه مو اوچت کړل چې خیر کړې څوک به وي چې وروړاندې شولو یو تنکی ګلاب چې به

غاړه یې د ګلونو امیل غوړیدلی وو تازه لکه چې د واده د اولې شپې غسل یې کړی وو داسې لکه غوړیدلې غوټۍ غوندې یې عطرورینو وړمو نوره ښکلا هم وربښلې وه ویل یې بیګا شپه له رینجرو سره په سرک مخ شوي وو له جګړې وروسته یو ملګری شهید شوی بل زخمي دی

همدلته دننه شولو ځايي ملګرو د ناشتې بندوبست وکړ تر څو ابو لیث او ملګری یې هم راورسیدل تر غرمې مونږ هم همدلته وو ملګري مې نصیب ځدراڼ صیب حنګ ته کړ د درې ملګرو د شهادت کیسه یې پرې وکړه او د هغوی د ژوند لیک لپاره یې څو شیبې ورسره مجلس وکړ غرمه مونږ تړې رخصت شولو همدا مو له ابو لیث سره وروستی دیدن وو خو د هغه ښایسته څهره مو تر اوسه په ذهن کې تاویږي.

نن سهار مې فیسبوک خلاص کړ چې ومو لید د هوډمن نیازي به نوم یو ملګري لیکلي وو هغه د دریو شهیدانو ورور او د پلار څلورم ځوی هم د خپلواکۍ په ارمان او د اسلامي نظام د راتګ په هیله ارمانجن شهید شو او دا ارمان یې له ځان سره یوړ.

شهید ابو لیث د پلار څلورم ځوی وو چې په شهادت ورسید او د غربي اشغالګرو په وړاندې یې خپله مبارزه د ژوند ترپایه په میړانه ترسره کړه.

## د کمپ ډیویډ لغوه شوې غونډه

مبصر

ټرمپ دتیرې شنبې په ورځ یو ناڅاپه د ټویټر له لارې د طالبانو سره د کمپ ډیویډ ناسته لغوه اعلام کړه .د ټرمپ دې فیصلې نه یوازې افغانان هک پک کړل، بلکې امریکایان او جهانیان یې هم په حیرت کې واچول .ځکه د شنبې تر ورځې پورې هیڅوک پدې خبر نه وو چې ټرمپ غواړي له طالبانو سره په کمپ ډیویډ کې ملاقات وکړي.

ټرمپ په خپل ټویټ کې لیکلي ول،»هیڅوک پدې خبر نه ول چې د یکشنبې په ورځ به د طالبانو مهم مشران او د افغانستان جمهورریس به زما سره جلا جلا په کمپ ډیوډ کې په مخفي توګه ملاقات وکړي «.

دا چې ټرمپ ولې طالبان او د کابل د رژیم مشران کمپ ډیویډ ته دعوت کړي ول، او بیا یې ولې دا ملاقات لغو کړ؟ دې خبرې زیات بحثونه راپارولي دي .خو زما په نظر د ټرمپ د دې اقدام څو عمده دلایل دا دي:

اول، ټرمپ ذاتا یو» شو مېن «دی .ټرمپ مدام هڅه کوي چې د مطبوعاتو او خبرو محور وي .د ټرمپ ایګو د هندوکش د غره په شان ستره ده. خو د ټرمپ بل فطري عادت دا دی چې هغه ډېر ژر او په آنې توګه خپل نظر بدلوي .فکري استقرار نه لري، په اصطلاح چټیې او هردم خیاله سړی دی .

دوهم، ټرمپ غوښتل چې د طالبانو سره د سولې د موافقې کریډېټ د ځان کړي .او امریکایانو ته دا وښیي چې هغه د سترو او جنجالي فیصلو د کولو جرات لري .هغه تل وایي چې یو ماهر» معامله ګر «شخص دی .خو پدې برخه کې هغه یو ماهر معامله ګر نه، بلکې د یوې پخې معاملې ورانونکی سو .

دریم، ټرمپ ګومان کاوه چې په کمپ ډیویډ کې به طالبان تر دونه زیات فشار لاندې راولي چې هغوی به مجبوره کړي چې د اشرف غني سره ګډه اعلامیه خپره کړي .هغه باور لاره چې ښایي خلیلزاد پر طالبانو باندې په هغه اندازه فشار نه وي راوستلای چې د ده شخصیت او مقام یې راوستلای سي . خو کله چې طالبانو د اشرف غني سره د ګډې ناستې څخه انکار وکړ، د ټرمپ نازک او ماشومانه اعصاب خراب سول، او د ځان د بچولو لپاره یې د سولې یو کلنه پروسه د څه وخت لپاره په لغته ووهله .

اوس سوال دا دی چې لدې راوروسته به څه کېږي؟ البته، واضح خبره ده چې د سولې د خبروو بدیل نسته .بله چاره نسته .او ټرمپ به مجبوره سي چې بېرته د سولې خبرې شروع کړي، او د طالبانو سره د سولې تکمیله سوې مسوده لاسلیک کړي .

ټرمپ زیات وخت نه لري .د امریکا انتخاباتو ته فقط یو کال پاته دی .ټرمپ د امریکایانو سره وعده کړې ده چې د افغانستان اوږد او بې پایانه جنګه به ختموي .ټرمپ پرون وویل چې له افغانستانه به امریکایي عسکر راوباسي، ځکه امریکا نه غواړي چې هلته د» پولیس «وظیفه اجرا کړي .هغه زیاته کړه د افغان حکومت باید ژر تر ژره د خپل امنیت مسولیت»پخپله په غاړه واخلي«.



## د مذاکراتو په اړه د ډونالډ ټرمپ د ټویټ په هکله

# د افغانستان د اسلامي امارت اعلامیه

موږ له امریکايي مذاکراتي ټیم سره ګټور مذاکرات درلودل او توافق نامه نهايي شوه، د امریکا مذاکراتي ټیم تر پرونه پورې له شویو پرمختګونو راضي و او خبرې مو په ښه فضا کې پای ته ورسولې، دواړه لوري د توافقنامې د اعلان او لاس لیک لپاره په تیاریو بوخت و.

د توافقنامې تر لاسلیک او اعلان وروسته مو د رواني سپتمبر میاشتي ۲۳ نیټه د بین الافغاني مذاکراتو د ناستي لومړۍ ورځ ټاکلې وه.

د سیمې او نړۍ هیوادونو او نړیوالو سازمانونو هم د دې پروسې ملا تړ کړی و.

اوس چې د امریکا جمهور رئیس ټرمپ له اسلامي امارت سره د مذاکراتو د بهیر درول اعلان کړل، دا به ترهرچا ډیر تاوان په خپله امریکا ته ورسوي، اعتبار به یې زیانمن، د سولې ضد دریځ به یې نور هم نړۍ ته ښکاره، د سر او مال زیان به یې زیات او په سیاسي تعامل کې به یې کردار متزلزل معرفي کړي.

د مذاکراتو په جاري ساتلو سره اسلامي امارت نړۍ ته ثابته کړه چې جګړه د نورو لخوا پرموږ تپل شوې، او که د جګړې پرځای د تفاهم لاره خپله شي، موږ تر پایه ورته ژمن یو.

د توافقنامې تر لاسلیک مخکې په یوه برید عکس العمل ښودل، نه د حوصلې او نه هم د کومې تجربې ښودنه کوي، په داسې حال کې چې ترياد برید لیږ وړاندې متحده ایالاتو او داخلي ملاتړو یې په ګڼو بریدونو کې سلګونو افغانان په شهادت ورسول او شتمنۍ یې د اور خوراک کړې.

د امریکا متحده ایالاتو ته د جمهور رئیس ټرمپ له لوري د ورتګ بلنه ډاکټر زلمی خلیلزاد د اګست د میاشتې په وروستیو کې راکړه موږ یاد سفر په دوحه کې د توافقنامې تر لاسلیک پورې ځنډولی و.

اسلامي امارت پخه پالیسي او غیر متزلزل دریځ لري، موږ شل کاله مخکې هم د تفاهم غږ کړی و نن مو هم هغه دریځ دی او باور لرو چې امریکا یې جهت به بیرته همدې دریځ ته راځي.

زموږ د تیرو اتلسو کلونو مبارزې به امریکاته ثابته کړې وي چې موږ بې له دې چې د هیواد اشغال مو په بشپړه توګه پای ته ونه رسیږي او افغانان خپلې خوښې ته پرېنښودل شي په بل هیڅ شي نه قانع کیږو، د همدې ستر هدف لپاره به روان جهاد ته دوام ورکوو او په نهایي بري باندې کلک باور لرو. ان شاءالله و ما ذلک علی الله بعزیز.

د افغانستان اسلامي امارت

۱۴۴۱/۱/۹هـ ق

۱۳۹۸/۶/۱۷هـ ش ــ ۲۰۱۹/۹/۸م

# Srak Magazine



دادي هغو ځوانانو قبرونه دي چې د مغرورو اشغالګرو غرور يې دړې وړې کړ.
دا شليدلي جنډې په هغو اتلانو رپيږي چې د نړۍ لويه امپراطوري يې مظلوم افغانستان ته
په ګونډو کړه او دا هغه شهيدان دي چې خپل اولادونه يې بې اسرې کړل مګر د هيواد له ازادۍ
هيچاته تير نه شول. اللهم نور مرقدهم و عطر مشهدهم و طيب مضجعهم

